خانقاہ اِمدادیہ اشرفیہ : گلشنِ اقبال، کراچی پاکستان

www.khanqah.org

# حقوق النِّساء

# یعنی

# دماندینی حقوق

شیخ العرب والعجم عارف باللہ

حضرت اقدس مولانا شاہ حکیم محمد اختر صاحب دامت برکاتہم

خانقاہ اِمدادیہ اشرفیہ

گلشنِ اقبال بلاک ۲ کراچی

# مقدمه

دجنوبی افریقې دبعضی خصوصی مُریدانو پر دعوت باندی دغه کال د۱۹۹۰ عیسوی دجنوری په میاشت کی د**شیخُ العرب والعجم مولانا شاه حکیم محمداختر صاحب مدظله** دجنوبی افریقې سفر وسو. دسفر په ابتدا کی یې عمره ادا کړه او په سعودی کی یې پنځلس شپې قیام وکی، هلته سعودی ته دجنوبی افریقې دسفر دعوت ورکونکی مولانا حسین بهیات صاحب دافریقې څخه دسفر دملګری دپاره راغلی. دجنوری پر۲۷تاریخ دشنبې په ورځ حضرت صاحب، دحضرت صاحب دغه خادم او مولانا حسین بهیات صاحب وجنوبی افریقې ته ورسیدل.

په داغه شپه دماخوستن دلمانځه وروسته دمولانا حسین بهیات صاحب پر کور باندی چی (دجنوبی افریقې په ښار) لنیشیا کی دی ډیر عُلماء حضرات دحضرت صاحب دمُلاقات دپاره راټول سول او حضرت صاحب پر خپل مبارك عادت باندی هغوته نصیحتونه شروع کړل، په نصیحتو کی یې تقریباً یو ساعت دماندینې حقوق بیان کړل. وروسته بیان اوریدونکو وه حضرت صاحب ته وویل چی موږ ته ډیره ګټه راورسیدل، یو عالم ورته وویل چی حضرت صاحب تا ددې ځای دخلګو یو خطرناکه مرض بیان کړی، ډیر خلګ په دې مرض اخته دی او دښځی په حق کی ډیر غفلت کوی او ده دغه خواهش ښکاره کی چی دغه بیان باید بیا په یو لوی مجلس کی وسی چی ګټه یې عامه سی او دغه خبری دټولو تر غوږو پوری ورسیږی، انشاء اللّٰه تعالٰی دډیری ګټی امید سته.

په دا بله ورځ هم ډیرو خلګو دغه فرمائش وکی چی دغه بیان باید په مسجد کی دډیرو خلګو ومخته وسی، او ډیرو عُلماوو چی دشپې په مجلس کی حاضر وه وې

ویل چی دشپې په بیان سره زموږ سترګی خلاصی سوې او موږ دخپلو ښځو څخه معافی وغوښتل او دهغو سره مو ښه ژوند شروع کړی.

نو د اعلان په مطابق دجنوری پر۳۰ تاریخ دسې شنبې په ورځ دماخوستن دلمانځه وروسته دآزادوِل دمدرسې په مسجد کی بیان وټاکل سو. حضرت صاحب تقریباً یو نیم ساعت دخدای پر مخلوق باندی درحم کولو او دتکلیف نه ورکولو او دښځی سره دښه اخلاقو په باره کی بیان وکړی کوم چی د **اِنَّ مِنَ الْبَیَانِ لَسِحْرًا** مصداق وو او داسی دررده ډك او تاثیرناکه بیان وو چی خاص او عام ټولو ژړل، عجبه منظر وو چی دحضرت صاحب دعشق ژبه، په دردکی ډوبی خبری او داُوښکو ډکی سترګی دخلګو زړونه ورکبابول او داسی معلومیدل لکه دزړو مځکی چی په سخته تنده کی دهدایت اُوبه جذبه وی.

اُف کلیجے منہ کو آتے ہیں تری آواز سے
کس قیامت کی تڑپ اُف تیرے افسانے میں ہے

ترجمہ: اُف زړونه خولې ته راځی ستا په ږغ سره، دا څنګه غضبناکه ناقراری ده ستا په خبرو کی.

قال تو پیدا شود از حال تو
حال تو شاھد بود بر قال تو

ترجمہ: ستا دحاله څخه ستاخبری پیداکیږی، ستاحال خپله شاهد دی ستا پر خبرو باندی.

او داسی معلومیدل لکه دغیبو څخه چی پر زړه باندی دمضمونو جامونه را روان دی.

جنت کی مے پیئے ہوئے ساقی تھامستِ جام
ساغر تھا، دورِ مے تھا، مقابل میں ہم بھی تھے

ترجمہ: دجنت شراب یې چیبنلی په جام مست وو ساقی، ساغر وو، دشرابو دور وو په مقابل کی یې زه هم وم.

او ماته دحضرت صاحب هغه شعرونه راپه یاد سول چی حضرت صاحب دخدای ددوستانو او دخدای دعاشقانو دپاره ویلی وه.

درِرازِ شریعت کھولتی ہے

ترجمہ: دشریعت درازو دروازه خلاصوی

زبانِ عشق جب کچھ بولتی ہے

ترجمہ: کله چی دعشق ژبه خبری کوی

خرد ہے محوِ حیرت اُس زباں سے

ترجمہ: عقل وداسی ژبی ته حیرانی کوی

بیاں کرتی ہے جو آہ وفغاں سے

ترجمہ: کوم چی په اُوښکو او ژړا سره بیانونه کوی

جو لفظوں سے ہوئے ظاہر معانی

ترجمہ: دلفظو څخه چی کومی معنیٰ وی سوې ښکاره

وہ پا سکتے نہیں دردِ نہانی

ترجمہ: هغه دزړه وپټ درد ته نسی رسیدلای

لغت تعبیر کرتی ہے معانی

ترجمہ: لغت معنیٰ ښکاره کوی

محبت دل کی کہتی ہے کہانی

ترجمہ: محبت دزړه قصه بیانوی

کہاں پاؤ گے صدرا بازغہ میں

ترجمہ: چیری به یې حاصل کړې دصدرا او بازغه(منطق او فلسفې) په کتابو کی

نہاں جو غم ہے دل کے حاشیہ میں

ترجمہ: کوم غم چی پټ دی دزړه په حاشیه کی

مگر دولت یہ ملتی ہے کہاں سے

ترجمہ: مګر دغه دولت چیری لاس ته کیږی

بتاؤں میں ملے گی یہ جہاں سے

ترجمہ: در وې ښووم چې دا چیرې حاصلیږي

یہ ملتی ہے خدا کے عاشقوں سے

ترجمہ: دا حاصلیږي دخدای دعاشقانو څخه

دُعاؤں سے اوران کی صحبتوں سے

ترجمہ: دهغو ددعاوو څخه او دهغو دصحبتو څخه

په دا بله ورځ ډیرو خلګو دغه وویل چې حضرت صاحب دبیان څخه پر موږ باندې ښکاره سول چې دماندینې په باره کې موږ ظالمان وو، نو موږ دبیان وروسته دخپلو ښځو څخه بخښنه وغوښتل او دا اراده مو وکړل چې بیابه هیڅکله ددوی سره بد وضعیت ونه کړو. دیو مدرسې مُهتمم په تلیفون کې حضرت صاحب ته وویل چې دبیان وروسته چې زه کور ته ولاړم نو ما وخپلې ښځې ته وویل چې تر ننه پورې ستا په حق کې چې زما څخه څونه غلطۍ سوې دې هغه دخدای دپاره را وبخښنه او په جیب کې چې څونه پیسې راڅخه وې هغې ته مې ورکړې او ورته ومې ویل چې بیابه هره میاشت یو څه پیسې دجیب دخرڅ دپاره درکوم او حساب یې هم نه درڅخه اخلم، داغه مُهتمم صاحب وه حضرت صاحب ته وویل چې دښځې دغه حق کوم چې حضرت تهانوي رحمة الله علیه بیان کړی دی چې ماندینې ته هره میاشت یو څه پیسې دجیب خرڅ دپاره ورکوه او حساب هم مه ځنې اخله (چې چیرې دې مصرف کړې) خدای ﷻ دې حضرت صاحب تاته خیر درکړي چې دډیر ضروري شي وخواته دې متوجې کړو، دښځې دحقوق په باره کې موږ ته ډیره لو پاملرنه وسوه، الله ﷻ دې استقامت پر راکړي.

همدغه رنګه نورو عُلماوو هم دداسې فائدې اظهار وکړی. څو ورځې وروسته په دې باره کې مو عجبه قصه واوریدل، یو سړي کوم چې خپله ښځه ډیره ازارول، دغه واری چې په دیني سفر تلی نو وخپلې ښځې ته یې وویل چې تر ننه پورې ما

پر تا ځونه ظلمونه کړی دی دهغو ښځښنه درڅخه غواړم، زما غلطی راوبخښنه نو ښځه بیچاره یې وارخطا سول او دآزادوِل دمدرسې مُهتمم مولانا عبدُالحمید صاحب وه ښځی ته یې ټیلفون وروکی چی نن معلومه نه ده څه پیښنه ده زما میړه زما څخه بخښنه وغوښتل او ولاړی حالانکه تردې دمخه داسی نه ده پیښنه سوې، زه بیریږم چی شاید پرده باندی کشف سوی دی چی دده دمرګ وخت نژدې دی او بیا دسفر څخه هیڅکله نه راځی په دې خاطر یې بخښنه راڅخه وغوښتل، نو دمولانا عبدُالحمید صاحب ښځی دغه اطمنان ورکړی چی داسی خبره نه ده، زموږ ملك(جنوبی افریقې) ته نن سبا یو حضرت صاحب راغلی دی کوم چی دماندینې حقوق بیانوی، ستا میړه به هم دهغه بیان اوریدلی یی، دا دهغه بیان تاثیر دی. ځو میاشتی وروسته مولانا حنیف صاحب او مولانا هارون صاحب دجنوبی افریقې څخه وکراچی خانقاه ته (داصلاح په نیت) دقیام دپاره راغله او دغه عُلماوو وه حضرت صاحب ته وویل چی حضرت صاحب ستا دبیان څخه دجنوبی افریقې ډیرو خلګو دخپلو ښځو په حق کی ډیره نرمی او دمحبت معامله شروع کړل. فالحمد للّٰه علی ذالك

ددې بیان دګټی په خاطر دغه بیان دپیتې څخه وکتاب ته نقل سو او ستاسی په خدمت کی وړاندی کیږی او دغه کتاب داول څخه تر آخره پوری خپله حضرت صاحب مدظله هم مطالعه کړی او ددې کتاب نوم "حقوقُ النِّساء" وټاکل سو. حق تعالیٰ دی دقبولیت شرف ورته عطا کړی او دامّتِ مُسلمه دپاره دې نافع وګرځوی او دحضرت صاحب او دمُرتب کونکی او دجمله معاونینو دپاره دې صدقۂ جاریه او دآخرت ذخیره وګرځوی.

**اٰمین یاربّ العٰلمین بحُرمة سیّدالمرسلین صلی اللّٰه علیه وسَلم**

مرتب کونکی

**یوخادم دشیخُ العرب والعجم حضرت مولانا شاه حکیم محمد اختر صاحب مدظله**

بسم اللہ الرحمن الرحیم

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَسَلاَمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى**
**اَمَّابَعْدُ فَاَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْم بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم**
**وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ. وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**
**اَلْمَرْأَةُ كَالضِّلْعِ اِنْ اَقَمْتَهَا كَسَرْتَهَا وَاِنِ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا وَفِيْهَا عِوَجٌ**

(بخاری صفحہ ۷۷۹ جلد ۲)

محترم اوريدونكو، عُلماءِ كرامو او محترم دوستانو! زه كوښښ كوم چی په آسانه الفاظو سره خپلی خبری تاسی ته وړاندی كم او زه دا اميد لرم چی تاسی به زما په خبره پوه سی انشاء اللّٰه تعالٰی. دغه وخت يو ډير ضروری مضمون درته بيانوم چی په هغه كی زموږ. څخه ډيری غلطی كيږی، كه څه هم هغه پير وی، عالم وی، تاجر وی يا كه جاهل دغه مضمون چی زه درته بيانوم دهر قسم خلكو دپاره ضروری دی او دغه مضمون څه شی دی؟ دغه داللّٰه جَلَّ جَلَالُهُ دمخلوق سره ښه اخلاق كول دی.

حضرت علامه بدرُالدين عينی رحمة اللّٰه عليه چاچی دبُخاری شريف شرح عمدةُ القاری ليكلی دی، ده دحضرت خواجه حسن بصری رحمة اللّٰه عليه خبره دابرار په تفسير كی نقل كړی دی، دغه خواجه حسن بصری رحمة اللّٰه عليه داسی تابعی دی چاچی ديوسلوشلو(۱۲۰) اصحابو زيارت كړی دی، محدثينو ليكلی دی

**﴿اِنَّ الْحَسَنَ الْبَصْرِىْ قَدْرَاٰى مِائَةً وَعِشْرِيْنَ صَحَابِيًا﴾**

ديو سلو شلو اصحابو زيارت كونكی دغه تابعی خواجه حسن بصری چی كله پيدا سو نو حضرت عمر رضی اللّٰه عنه دده سنتِ تحنيك ادا كړی او سنتِ تحنيك څه شی دی؟ كله چی كوچنی پيداسی نو دخاندان يو نيك سړی عسل يا خرما وخوری بيا دهغه(عسلو يا خرما څخه) لږ غوندی ناوړی دكوچنی په خوله كی وركړی، ددې نوم

سنتِ تحنيك دى. دحسن بصرى سنتِ تحنيك اميرُالمؤمنين حضرت عمرؓ اداکړى.
په اصحابوکى چى چاته دټولو تر مخه داميرُالمؤمنين لقب ورکړل سو هغه حضرت
عمرؓ دى، دچا پر ايمان راوړلو چى په آسمانو کى خوشحالى جوړى سوې او دغه
عزت ورکړل سو چى حضرت جبرئيلؑ نازل سو او وې فرمايل چى يامحمدﷺ

﴿اِسْتَبْشَرَ اَهْلُ السَمَآءِ بِاِسْلَامِ عُمَرَ﴾(ابن ماجہ صفحہ۱۱)

نن دعمر داسلام پر راوړلو باندى ملائکى په آسمان کى خوشحالى جوړوى.
تاسى فکر وکى چى څونه درجه يې وه ددې خلګو چى پر اسلام راوړلو يې، کلمه ويلو
يې په آسمانو کى ملائکو خوشحالى جوړى کړې او دغه خبر راوړونکى حضرت
جبرئيلؑ هغه وخت يو آيت په راوړلو سره نازل سو هغه کوم آيت وو؟

﴿يَآيُّهَاالنَّبِىُّ حَسْبُکَ اللّٰهُ وَمَنِ اتَّبَعَکَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾(سيپارہ۱۰سورت انفال)

اې نبى ستا دپاره اللّٰه کافى دى او ستا تابعداره او غلامان دغه مسلمانان هم ستا دپاره
کافى دى. ددې تر مخه داسى آيت نه وو نازل سوى، که څه هم څلويښت کسانو
ايمان راوړى وو لاکن دحضرت عمرؓ دايمان دراوړلو وروسته دغه آيت نازل سو،
ددې آيت دنازليدو مقصد حضرت عمر دى يعنى دده اسلام راوړل ددې آيت دنازليدو
سبب وګرځيدى چى اې نبى اللّٰهﷻ ستا دپاره کافى دى او عمرؓ غوندى دلاوره او
طاقتوره صحابى تاته درکول کيږى داسى تابعداره مسلمانان هم ستا دپاره کافى دى.
ددې آيت په تفسير کى حضرت تهانوى رحمة اللّٰه عليه فرمائى چى﴿يَآيُّهَاالنَّبِىُّ
حَسْبُکَ اللّٰهُ﴾ باندى ﴿وَمَنِ اتَّبَعَکَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ ولى عطف کړل سوى دى يعنى
داللّٰهﷻ دکفايت وروسته دايمان والو دکفايت تذکره ولى سوې ده، دچا دپاره چى
اللّٰهﷻ کافى سى نو داللّٰه تعالىٰ دکفايت وروسته بيا دمومنانو دکفايت (دبيانولو) څه
ضرورت وو؟ (په دې خاطر چى) دحضرت عمرؓ شان يې ښکاره کول (مقصد) وو چى
دده دراتګ سره سم په کعبه شريفه کى اذان وسو او په جماعت سره لمونځ وسو، دده
دايمان دراوړلو سره سم اصحابو دتکبير ناره پورته کړل تردې حده چى تر مکې شريفى

پورى دتكبير بږغ ورسيدى او وه رسول اللّٰهﷺ ته يې عرض وكړى چې موږ پر حق يو نو موږ په پټه ولى لمونځ وكړو، لهٰذا دوه قطاره يې جوړكړل پر يو قطار يې سيدُالشهداء حضرت حمزهؓ مقرره كړى او پر بل قطار باندى خپله ودريدى او رسول اللّٰهﷺ يې په مينځ كى راوستى او په دواړو قطارو كى يې رسول اللّٰهﷺ تر مكې شريفى پورى راوستى او لمونځ ئې وكى او اسلام يې سرلوړه كړى.

﴿كَانَ الْاِسْلَامُ قَبْلَ اِسْلَامِ عُمَرَ فِيْ غَايَةِ الْخَفَاءِ وَبَعْدَهٗ عَلٰى غَايَةِ الْجَلَاءِ﴾

اسلام ترمخه چې څونه پټ وو دده دايمان راوړلو وروسته هغونه ښكاره سو.

حضرت تهانوى رحمة اللّٰه عليه فرمائى چې په دغه آيت كى اللّٰهﷻ دخپل كفايت سره دمومنانو كفايت په دغه خاطر بيان كړى چې دكفايت دوه قسمه دى، يو حقيقى كفايت دى چې په اصل كى خو بس اللّٰهﷻ دبنده دپاره كافى دى لاكن يو ظاهرى كفايت هم وى، دفوج او لښكر طاقت هم وى چې په ظاهره هم پر دښمنانو باندى بيره ولويږى. په (طواف كى) دا رَمل ولى دى چې لږ په څغاسته تګ وكى؟ پر كافرانو باندى دخوف دپاره دى. نو اللّٰهﷻ وفرمايل چې اې نبى ستا دپاره اصل كفايت كونكى خو اللّٰه دى لاكن حضرت عمر غوندى طاقتوره صحابى او نور ځان قربان كونكى اصحاب تاته دركوم چې په ښكاره هم پر دښمنانو باندى بيره ولويږى.

نو معلوم سول چې ظاهرى اسباب هم نعمت دى، دخپلو دوستانو پر تعداد باندى شكر ادا كړى، كه ته دمدرسې مُهتمم يې يا ديو ادارې مدير يې او اللّٰهﷻ تاته ددينى خدمت دپاره كومك كونكى دركړى نو ته دالله تعالى شكر اداكړه ځكه چې دا ظاهرى كفايت دى، حقيقى كفايت كونكى خو بس اللّٰهﷻ دى، هم اللّٰهﷻ دبنده دپاره كافى دى مګر ظاهرى اسباب هم يو نعمت دى، نو دحضرت عمرؓ دايمان وروسته اسلام څونه پرمخ ولاړى.

نو دحسن بصرى رحمة اللّٰه عليه سنتِ تحنيك حضرت عمرؓ اداكړى، څنګه خوش بخته كوچنى دى دغه چې داميرُالمؤمنين حضرت عمرؓ ناوړى دچا

وه سينې ته تاسی دهغه دعلم او فضل په څه حال وی او دحسن بصری مور دحضرت اُمِّ سلمٰةؓ په کور کی مزدوری کوله، جاروکښنی به يې کوله، سودا به يې راوړله، سُبحانَ اللّٰہ! څونه مبارك کوچنی دی دغه، دچا مور ته چی دنبوت په خاندان کی، دنبی په کورنۍ کی کار ورپيداسی. حسن بصری رحمة اللّٰه عليه چی به کله ژړل او مور به يې هلته نه وه حضرت اُمِّ سلمٰةؓ به خپلی شيدې ورکولې. محدثينو ليکلی دی چی يا ئې دآرامولو دپاره ځګر په خوله کی ورکوی چی کوچنيان په دغه سره آراميږی يا به ئې په کرامت کی ځګر شيدې کولې. دحسن بصری رحمه اللّٰه عليه دابرار (دلفظ) تفسير مخته را روان دی. رسول اللّٰهﷺ ارشاد فرمائی چی

﴿اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَيَدِهٖ﴾ (بخاری صفحہ ٦ جلد ١)

کامل او پوخ مسلمان، پر اللّٰهﷻ ډير ګران مسلمان هغه دی دچا دژبی او لاس څخه چی وبل مسلمان ته تکليف ونه رسيږی.

دلته علامه بدرُالدين عينی رحمة اللّٰه عليه يو علمی سوال قائم کړی دی چی آيا په پښو باندی دوهلو اجازه سته ځکه چی په حديث کی صرف دغه ويل سوی دی چی په ژبه سره تکليف مه ورکوه او په لاس سره تکليف مه ورکوه، ددې جواب ورکوی چی دبدن کومی برخی چی دتکليف دورکولو دپاره ډير استعماليږی هغه صرف دوه دی، ژبه او لاس، دپښو نوبت خو ډير کم راځی، نو کومی برخی چی دتکليف دورکولو دپاره ډير استعماليږی چی دهغو دحفاظت کوښښ وسی نو په پښو دوهلو نوبت خو ډير کم راځی، دهغه په قبضه کی راوستل خو ډير آسانه دی.

يو هندو (په هندوستان کی) زموږ دپير مولانا شاه ابرارُالحق صاحب څخه پوښتنه کړې وه (چی تاسی واياست) چی مسلمان هغه دی چی دده دتکليف څخه صرف مسلمان خلاص وی نو ددې معنٰی خو دغه سول چی کوم خلګ مسلمانان نه دی يعنی هندوانو او کافرانو ته ښه تکليفونه ورکوه، نو زموږ پير جواب ورکړی چی يا ! ځکه چی دمسلمانانو راکړه او ورکړه دمسلمانانو سره ډيره وی نو کله چی په کثرت

سره یو دبل سره ژوند کونکی(یعنی مسلمانان) په خپل مینځ کی یو او بل دتکلیف څخه وساتی نو دهندوانو سره لیدل او واخه او راکه خو کله کله وی هغه خو به بیخی دمسلمانانو څخه په امن وی. لکه دوه لوښی کوم چی یوځای اوسیږی کله چی ددغه دوو لوښو تر مینځ ټَك او ټوك نه پیښیږی نوکوم لوښی چی لیری ځنی اوسیږی دهغو سره به ئې څنګه جنګونه پیښیږی. البته دجهاد حکم جلا دی. لاکن په عام حالاتو کی که کافران صلح وکړی یا مسلمانان په تکلیف نه کړی نو دوی خو به بیخی دمسلمانانو دژبی او لاسو څخه په امن وی ځکه چی دمسلمانانو ددوی سره ډیره معامله نه پیښیږی. دغه جواب زموږ شیخ ورکړی او ماته یې نقل کړی.

علامه عینی رحمه الله علیه یو بل علمی سوال هم کړی دی چی آیا په ژبه سره څوك چاته تکلیف ورکولای سی، په ژبه کی خو هډوکی هم نسته، دغوښو یوه پسته ټوټه ده، په ژبه سره که څوك سړی ووهی نو آیا هغه به خوږسی یاکه دژبی په الفاظو سره تکلیف رسیږی، نو بیا رسول اللهﷺ دغه ولی نه دی فرمایلی

﴿اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ اَلْفَاظِ لِسَانِهٖ﴾

یعنی مسلمان هغه دی دچا دژبی دالفاظو څخه چی بل مسلمان محفوظه وی. ددې سوال جواب ورکوی چی یا! بعضی وخت بیله دالفاظو په ژبه سره هم خلګ چاته تکلیف ورکوی، درسول اللهﷺ دنبوت علم ته دالفاظو د اداکیدو کمال ورکړل سوی وو، په دغه خاطر نبیؑ ﴿مِنْ اَلْفَاظِ لِسَانِهٖ﴾ نه دی فرمایلی (په دې خاطر) چی په دغه حدیث پاك کی هغه خلګ هم شامل سی﴿مَنْ اَخْرَجَ لِسَانَهٗ اِسْتِهْزَاءً﴾کوم چی په ژبه سره یو چا ته پیښې وکی، هغه وخت پیښې کونکی سړی په ژبه سره هیڅ الفاظ نه وایی، صرف ژبه راوباسی او دپسخنده یې ماضی وښوروی او وځغلی، اکثره کوچنیان داسی کوی کله چی هغه وګوری چی وهل راکول کیږی او بدله نسو اخیستای نو پیښې وکی او ځنی وځغلی، بعضی وخت یې لویان هم وکی ژبه راوباسی او سره وې ښوروی او داسی په چا پسخند ووهی او په خوله هیڅ ونه وایی. وګوری

دنبوت دکلام څونه بلاغت دی ﴿اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ﴾ يې وفرمايل چې په دغه حديث کې هغه خلگ هم داخل سول کوم چې صرف په ژبه سره چاته تکليف ورکوی که څه هم په ژبه سره هيڅ ونه وايي، که ﴿مِنْ اَلْفَاظِ لِسَانِهٖ﴾ وای نو په ژبه سره تکليف ورکونکی به په دغه حديث پاك کې شامل نه وای، دغه دنبوت دکلام دبلاغت کمال دی.

نو ما عرض کاوه چې اَبرار کوم خلگ دی، گوری صرف دوه قسمه قومونه دی يو ابَرار(نيك بندگان)، دوهم فُجَّار(نافرمانه خلگ).

﴿اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِیْ نَعِيْمٍ﴾ (سيپاره۳۰ سورت انفطار)

نيك بندگان به په جنت کې عيش کوی

﴿وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِیْ جَحِيْمٍ﴾ (سيپاره۳۰ سورت انفطار)

او نافرمانه خلگ به په دوږخ کې سوځل کيږی.

نو موږ اَبرار(نيك بندگان) څنگه جوړيدای سو، څنگه دنيکانو په کتاب کې زموږ نوم وليکل سی او داَبرار څه معنٰی ده؟ خواجه حسن بصری رحمة الله عليه داَبرار تفسير داسې کوی چې اَبرار هغه خلگ دی

﴿اَلَّذِيْنَ لَا يُؤْذُوْنَ الذَّرَّ﴾ (عمدۃ القاری صفحہ۱۳۲ جلد۱)

کوم چې ميږيانو ته هم تکليف ورنه کړی

﴿وَلَا يَرْضَوْنَ الشَّرَّ﴾ (عمدۃ القاری صفحہ۱۳۲ جلد۱)

او کوم چې(دخدای) په نافرمانی خوشحاله نسی

نه په خپل گناوو خوشحاله سی، نه دنورو په گناوو خوشحاله سی. دخدای نافرمانی په ليدو سره دهغو زړه غمجن سی، خپله گناه يې وی ياکه بل څوك په گناه کې ووينی نو زړه ته يې غم ورسيږی، دا دالله ﷻ (سره دهغو) دتعلق دليل دی. دچا چې دخپل پلار سره محبت وی نو دپلار نافرمانی کونکی ورونه په ليدو سره دهغه زړه غمگين سی چې تاسی زما څنگه ورونه ياست چې پلار ته تکليف ورکوی، نو کوم خلگ چې

خدایﷻ ناراضه کوی دهغو ګناوی په لیدو سره هغه مومن دچا په زړه کی چی دخدای محبت وی هغه غم محسوسوی.

زموږ شیخ شاه عبدالغنی رحمة اللّٰه علیه وفرمایل چی دخدای یو دوست روان وو، یو سړی ئې په ګناه کی ولیدی، بس بیرته راغلی، دونه غمجن سو چی دتللو طاقت یې ختم سو، راغلی پر چارپائی پریوتیۍ، پتهو یې پرځان واچوی، ژړا یې شروع کړل، غمګینه سو چی آه زما درب نافرمانی کیږی، دوه ساعته باد چی کله بولو ته ولاړی نو په بولو کی یې وینه راغله دونه غمجن سو. دغه دی دخدای دوستان. نن موږ ګناوی کوو او تیغ هم نه کاږو دخانقاوو په ماحول کی، داولیاوو په ماحول کی. فکر وکی چی کله دقیامت په ورځ پوښتنه راشخه وسی چی تاسی ته اللّٰهﷻ دینی ماحول درکړی وو، دنیکو خلګو په ماحول کی تاسی دا رنګه غلط کارونه کول، فکر وکی او خپل حساب وکړی.

بس دا داللّٰهﷻ حلم او کرم دی چی موږ په عذاب کی نه نیسی، هغه حلیم او کریم ذات دی بس وقت راکوی چی شاید اُوس توبه وکاږی کیدای سی اُوس توبه وکاږی. مفتی اعظم پاکستان مفتی محمد شفیع صاحب رحمة اللّٰه علیه ماته خپل یو شعر وویلی، دخدای شکر دی چی ماته اللّٰه پاك دلوی لوی بزرګانو سره داوسیدلو سعادت په خپل کرم سره بې له استحقاقه رابخښلی دی. مفتی صاحب خپل دغه شعر راته وویلی

ظالم ابھی ہے فُرصتِ توبہ نہ دیر کر
وہ بھی گِرا نہیں جو گِرا پھر سنبھل گیا

*ترجمہ*: ظالمه اُوس هم وخت سته په توبه کولو کی ځنډ مه کوه، هغه هم لویدلی نه دی کوم چی بیرته ځان راپورته کی.

یعنی که انسان توبه وکاږی نو اللّٰهﷻ ته دګناهګاره سړی توبه، ژړا او فریادونه، آه و زاری او دپښیمانی اُوښکی ډیرې قیمت لری دغه واوری، کله چی

ګناهګاره بنده دخپلو ګناوو په یادولو سره وه خدای ته ژاړی چی اې خدایه زما څخه بدکار وسو ما وبخښه، ما معاف که، ما مه رسوا کوه، ماته سزا مه راکوه، زه کمزوره یم، ستا ددوږخ دعذاب برداشت په ماکی نسته نو هغه وخت دهغه اُوښکی دشهیدانو دوینو په برابر تلل کیږی.

وګوری مولانا جلالُ الدین رومی رحمة اللّٰه علیه کوم چی دټول دنیا عُلماءِ یې تسلیموی (چی ډیر لوی دخدای دوست وو) هغه فرمائی

که برابر می کند شاهِ مجید
اشک را در وزن با خُونِ شهید

اللّٰه ﷻ دپښیمانی اُوښکی، دخدای دبیری څخه راتوی سوی اُوښکی دشهیدانو دوینو په برابر تلی. پر دغه مضمون باندی د درده ډک زما دوه شعرونه دی او ویونکی ته داسی محسوسیږی لکه دمولانا رومی صاحب کلام چی دی.

هغه شعرونه دغه دی

قطرهٔ اشکِ ندامت در سجُود
همسری خُونِ شهادت می نمُود

دپښیمانی هغه اُوښکی چی په سجده کی دګناهګارانو تر سترګو راسی دونه قیمتی دی چی داللّٰه ﷻ رحمت هغه دشهیدانو دوینو په اندازه تلی. لکه څنګه چی په حدیث شریف کی دی

﴿لَیْسَ شَئٌ اَحَبَّ اِلَی اللّٰهِ مِنْ قَطْرَتَیْنِ وَاَثَرَیْنِ قَطْرَةِ دُمُوْعٍ مِنْ خَشْیَةِ اللّٰهِ وَقَطْرَةِدَمٍ یُهْرَاقُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ. الخ﴾ (مشکوٰة، کتاب الجهاد صفحه ۳۳۳)

یعنی وه اللّٰه ﷻ ته هیڅ شی تر دوو څاڅکو ډیر محبوب نه دی، یو هغه داُوښکو څاڅکی چی دخدای دبیری څخه (تر سترګو) راتوی سوی وی او دوهم دوینی هغه څاڅکی چی دخدای په لاره(جهاد) کی توی سوی وی. او زما دوهم شعر دی

ھر کجا گرید بہ سجدہ عاشقے
آں زمیں باشد حریم آں شہے

چیری چی دخدای یو عاشق په سجده کی ژاړی نو هغه وخت دمځکی هغه ټوټه دهغه عاشق دپاره دخدای دربار جوړسی.

په زاری سره دژړا کونکو دپاره علامه آلوسی دخپل تفسیر روحُ المَعَانی ددیرشمی(۳۰) سیپارې د﴿اِنَّا اَنْزَلْنَا﴾ دسورت په تفسیر کی یو حدیثِ قُدسی نقل کړی دی. حدیثِ قُدسی هغه حدیث دی چی دنبیﷺ دژبی ځخه راووځی مګر دغه ووایی چی(دغه خبره) اللهﷻ داسی فرمایلې ده.

نو رسول اللهﷺ فرمائی چی اللهﷻ داسی فرمایلی دی چی کله یو بنده په زاری سره بخښنه غواړی چی اې الله زما ځخه ډیری ګناوی وسوې ته ما وبخښنه، قبر ته به په کوم مخ درځم، دقیامت په ورځ به تاته څنګه مخ دربښکاره کوم نو دده دغه زاری کول دخدای دونه خوښ دی چی دده دزاری دغه ږغ وه خدای ته دخلګو دسُبحان الله سُبحان الله تر تسبیحاتو ډیر خوند ورکوی.

اُوس نو دحدیثِ قُدسی الفاظ هم واوری. اهلِ علم حضرات دی دتفسیر روحُ المَعَانی ددیرشمی(۳۰)سیپارې د﴿اِنَّا اَنْزَلْنَا﴾ په تفصیل کی دغه حدیث وګوری.

رسول اللهﷺ فرمائی چی الله تعالٰی داسی فرمائی

﴿لَاَنِیْنُ الْمُذْنِبِیْنَ اَحَبُّ اِلَیَّ مِنْ زَجَلِ الْمُسَبِّحِیْنَ﴾(صفحہ۱۹۶جلد۳۰)

دګناهګارانو ژړا، آه کول، زاری کول ماته دتسبیح ویونکو دسُبحان الله سُبحان الله تر آوازو ډیر محبوب دی. او ددیوبند دمدرسې جوړونکی مولانا قاسم نانوتوی رحمة الله علیه یو عجبه خبره وفرمایل چی ما دخپل شیخ مولانا شاه عبدالغنی رحمة الله علیه ځخه په څو واری واوریدل.

زموږ پیر دحضرت تهانوی رحمة الله علیه دلوی خلیفګانو ځخه وو او دحضرت مولانا اصغر میا صاحب رحمة الله علیه دزمانې وو، دغه دواړو بزرګانو یعنی

زموږ شيخ او مولانا اصغر ميا صاحب په جون پور(هندوستان) کی يوځای په مدرسه کی درس ورکوی. په دغه خاطر مفتی اعظم پاکستان مفتی محمد شفيع صاحب به زموږ پير ته ويل چی حضرت صاحب ته خالی زما پير برادر نه يې بلکې زه تا دخپل استاد په درجه کی هم بولم ځکه چی تا زما د اُستاد مولانا اصغر ميا صاحب سره په يوه ځای کی درس ورکوی.

نو مولانا قاسم نانوتوی صاحب وفرمايل په کوم ملك کی چی پاچا يو شی دبل ځای څخه راوغواړی، ديو بل ملك څخه يې طلب کړی يعنی راوغواړی نو پاچا دهغه شی ډير عزت او قدر کوی ځکه چی دبادشاه په ملك کی هغه شی نسته نو مولانا قاسم صاحب به فرمايله دالله جَلَّ جَلَالُهُ دلويی او جلال چی کوم دربار دی په هغه کی اُوښکی نسته په دغه خاطر الله جَلَّ جَلَالُهُ زموږ داُوښکو ډير قدر کوی ځکه چی اُوښکی خو دګناهګاره بندګانو راتويږی، دملائکو ژړا نه ده زده ځکه چی دهغو سره پښيمانی نسته، هغوته دعبادت قُرب خو حاصل دی، دپښيمانی قُرب نه دی ورته حاصل، دپښيمانی قُرب خو موږ ګناهګارانو ته حاصل دی.

په دغه خاطر مولانا شاه محمد احمد صاحب فرمائی

*کبھی طاعتوں کا سرور ہے کبھی اعترافِ قصُور ہے*
*ہے مَلک کو جس کی نہیں خبر وہ حضور میرا حضُور ہے*

*ترجمہ:* کله دعبادتو خوندونه دی کله پر ګناوو دپښيمانی خوندونه دی، چی ملائکی نه دی په خبری حاصل ماته داسی خوندونه دی.

دخدای ددوستانو دپښيمانی کوم خوندونه چی دی ملائکو ته هغه نعمت نه دی حاصل ځکه چی دهغو څخه خطاوی نه کيږی، ملائکی پښيمانی څه پيژنی، هغه خو هر وخت سُبحان الله وايی، هغه خو پاك مخلوق دی، الله جَلَّ جَلَالُهُ په دې خاطر يو داسی مخلوق(يعنی انسان) پيدا کی چی دهغو پښيمانی وګوری يعنی دبعضی بندګانو څخه سر بيره دتېنګی ارادې چی کله دبشری تقاضې څخه دمغلوبيدو په خاطر ګناه وسی نو

په دې غم کې چې آه ما خپل رب ناراضه کړی دهغو زړه به وینی سی او په پښیمانی او زاری سره او دبخښنې په غوښتلو سره به ما راضی کړی او زه(اللّٰه سبحانه وتعالیٰ) به ددې پښیمانی دلاری دخوا ودوی ته خپل قُرب(نژدیوالی) عطا کړم. علامه آلوسی سید محمود بغدادی رحمة اللّٰه علیه په خپل تفسیر روحُ المَعَانی کی دسُلطان ابراهیم ابنِ اَدهَم قصه لیکلې ده، ددنیا دپاچاهانو قصه آیا په تفسیروکی راتلای سی؟ دا هغه پاچا دی چی سلطنتِ بلخ یې دالله پر نامه قربان کړی، په دغه خاطر نن په تفسیرو کی دده قصې راځی، سلطنت یې ورکړی او پر خدای قربان سو نو

اب مِرا نام بھی آئے گا ترے نام کے ساتھ

*ترجمہ:* اُوس به زما نوم هم یادیږی ستا دنامه سره.

وګوری(روحُ المَعَانی صفحہ۱۰۴) دځلورمی سیپارې دسورتِ آل عمران د﴿**اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا**﴾په تفسیر کی علامه آلوسی دسُلطان ابراهیم ابنِ اَدهَم تذکره کړې ده، یعنی شیطان کله تاسی خطاباسی، پر تاسی باندی کله قدرت پیدا کوی؟ کله چی تاسی ګناه وکړی، د﴿**بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا**﴾څخه معلوم سول چی دیوې ګناه څخه بله ګناه پیداکیږی لکه څنګه چی دیوې نیکی څخه دبلی نیکی کولو توفیق ډیریږی. کله چی بنده ګناه وکړی، بدکارونه وکړی نو په زړه کی یې تاریکه پیدا سی، بیا شیطان په دغه تاریکه کی قبضه وکړی، کنې شیطان طاقت نه لری چی دمومن پر زړه باندی قبضه وکړی ﴿لامجال له علی ابن ادم بالوسوسة الا اذا وجد ظلمة فی القلب﴾ دشیطان طاقت نسته چی دآدم علیه السلام داولادو پر زړه باندی قبضه وکړی لاکن کله چی په زړه کی (دګناوو) تاریکه ووینی نو په مثل دشو پرك راسی او پر ګناه کولو باندی سړی آماده کوی. لاکن که سړی په پښیمانی سره توبه وکاږی نو دپښیمانی په نور سره به زړه بیرته روښانه سی او شیطان به ځنی وځغلی. دچاچی زړه وغواړی چی شیطان ژر دزړه څخه وباسی نو هغه دی ژر توبه وکاږی، په توبه کولو کی دی ځنډ نه کوی کنې شیطان به دغه زړه خپله اډه او مرکز جوړ کړی.

دداغه آیت په تفسیر کی یې دسُلطان ابراهیم ابنِ اَدهَم رحمة اللّٰه علیه قصه لیکلې ده چی ده طواف کوی او وه خدای ته یې خواست کاوه چی اې خدایه ماته عصمت راکه یعنی زما څخه هیڅ وخت ګناه ونسی، زه معصوم(دملائکو په شان بې ګناه) سم، نو په زړه کی (دخدای دطرفه څخه) ږغ پر وسو چی اې ابراهیم اِبن اَدهَم! ﴿**كُلُّ عِبَادِهٖ يَسْئَلُوْنَهُ الْعِصْمَةَ**﴾ټوله انسانان دګناوو څخه دپاکیدو خواست کوی که خدای ټوله معصوم کړی ﴿**عَلٰى مَنْ يَّتَكَرَّمُ وَعَلٰى مَنْ يَّتَفَضَّلُ**﴾ نو بیابه خدای (خپل)کرم پر چا کوی او مهربانی به پر چا کوی، که ټوله انسانان ملائکی سی نو اللّٰه جَلَّ جَلَالُهٗ به څوك بخښی، دده مغفرت به پر چا ښکاره کیږی.

دامام غزالی صاحب استاد امام اسفرائینی رحمة اللّٰه علیه خبره مُلّا علی قاری رحمة اللّٰه علیه دمشکوٰة شریف په شرح کی لیکلی دی چی ده هم دیرش(۳۰) کاله خواست وکی چی یااللّٰه ما معصوم کړه، زما څخه هیڅ وخت غلطی ونسی، هیڅ خطا راڅخه ونسی، دیرش(۳۰) کاله وروسته په زړه کی خیال وروګرځیدی چی اللّٰه جَلَّ جَلَالُهٗ دونه کریم ذات دی لاکن زما ددیرشو(۳۰) کالو دعا یې (تر اُوسه) نه ده قبوله کړې، دستی یې په زړه کی (دخدای دطرفه څخه) ږغ واوریدی چی اې اسفرائینی! ته دګناوو څخه پاکیدل غواړې لاکن ستا دګناوو څخه دپاکیدو مقصد څه شی دی؟ هم داغه ستا مقصد دی چی ته زما محبوب جوړیدل غواړې، چی ستا دغه مقصد دی نو ما دمحبوب دجوړیدو دپاره دوې دروازې خلاصی کړی دی، (یوه دتقوا او بله دتوبې ده) ته دمعصومیت او دتقوا پر دروازې ولی مُبښتی یې، آیا ته زما ددغه آیت تلاوت نه کوې چی﴿**اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ**﴾(سیپاره۲ سورت بقره) اللّٰه جَلَّ جَلَالُهٗ توبه کونکی هم خپل محبوب ګرځوی. نو چی ما دتوبې یوه بله دروازه هم خلاصه کړې ده نو (ماته) دهغې دروازې څخه ولی نه راځې، که غلطی درڅخه وسی نو په توبه کولو سره بیرته ما راضی که.

که څوك په رشتیا سره توبه وکاږی او ټینګه اراده وکی چی اې اللّٰه بیابه

هیځکله ګناه ونه کړم، مړ به سم خو بیا به تا خوابدی نه کړم لاکن دپوره کوښښ سربیره بیا دده توبه ماته سی او دی بیا په پښیمانی سره وخدای ته توبه وکاږی، ژړا وکی، عاجزی وکی او بیا ئې دګناه کولو اراده نه وی نو په حدیث پاك کی دی چی داسی سړی پرګناه باندی په ټینګار کولوکی نه دی حساب، که څه هم په ورځ کی اویا(۷۰) واره دده توبه ماته سی. لهٰذا پر ګناوو باندی پښیمانی کونکی دی ناامیده کیږی نه.

غالب یو دنیاوی شاعر وو هغه ویلی وه

کعبہ کس مُنہ سے جاؤ گے غالب
شرم تم کو مگر نہیں آتی

ترجمہ: وه کعبې شریفی ته به په کوم مخ ورځې اې غالبه، (دګناوو په سبب) ته نه شرمیږې.

دالٰه آباد(هندوستان) هغه بزرګ مولانا شاه محمد احمد صاحب دچا وه صحبت ته چی دمُصنَّف عبدالرزاق پر کتاب باندی عربی حاشیه لیکونکی مولانا حبیبُ الرحمٰن اعظمی او مولانا علی میا ندوی غوندی لوی عُلماء ورځی او زموږ شیخ حضرت مولانا شاه اَبرارُالحق صاحب هم ورځی، دغه بزرګ وفرمایل چی غالب شاعر خو اُمّت ناامیده کړی، دده دغه شعر په ویلو سره چی څونه ګناهګاره بندګان دی دشرم په خاطر به کعبې شریفی ته تګ پریږدی چی زموږ مخ ددې لایق نه دی چی وه کعبې شریفی ته ولاړ سو، موږ خو په ګناوو اخته یو، لهٰذا ددې شعر اصلاح شرعاً واجب وه نو مولانا محمد احمد صاحب وفرمایل چی ما ددې شعر داسی اصلاح وکړه، ستاسی څخه هیله کوم چی دخدای ددوست کلام واوری او دا فیصله وکړی چی دیو دنیاوی شاعر او دیو خدای ددوست په شعرکی څونه دمځکی او آسمان فرق وی، فرمائی چی

میں اسی مُنہ سے کعبہ جاؤں گا
شرم کو خاک میں ملاؤں گا
اُن کو رو رو کے میں مناؤں گا
اپنی بگڑی کو یُوں بناؤں گا

ترجمہ: زه په داغه مخ وه کعبې شریفی ته ځم، شرم په خاورو ګډوم، خدای په ژړا راضی کوم، زه خپل کار داسی سموم.

تاسی ووایاست که ماهی لس واره ونیسی او داُوبو څخه یې راوباسی او هر واری دماهی څخه پوښتنه وکړی چی آیا اُوبو ته په تلو کی ته نه شرمیږې، تا لس واری دغه بې عقلی کړې ده چی لس واری داُوبو څخه راوتلی یې، نو ماهی به ورته ووایی چی زر واری دغه بې عقلی وکړم لاکن اُوبه خو زما ژوند دی. همدغه رنګه دالله جل جلاله درحمت غیږ دمومن دپاره (دقرار) ژوند دی، موږ به ترڅه وخته دخدای څخه ځغلو، که شیطان په موږ یو لك ګناوی وکړی لاکن موږ به په زاری سره، په سجده کی په ژړا سره (بیرته) خدای جل جلاله راضی کړو. په دې خاطر زموږ خواجه عزیزُ الحسن مجذوب صاحب فرمائی

جو ناکام ہوتا رہے عُمر بھر بھی
بہرحال کوشش تو عاشق نہ چھوڑے
یہ رشتہ محبت کا قائم ہی رکھے
جو سوبار ٹوٹے تو سو بار جوڑے

ترجمہ:که سړی ټوله عمر (دګناه کولو په سبب) ناکامه کیدی، خو عاشق دی (دخدای دراضی کولو) کوښښ نه پریږدی، دغه (دخدای سره) دمحبت تعلق دی قائم وساتی، که دغه تعلق (دګناوو په خاطر) سل واری مات سی نو سل واره دې بیرته (په توبه کولو سره) قائم کړی.

توبه چې کله ماته سی نو سړی ناامیده سی چې زما توبه بیکاره سوه، زما وروره هغه توبه بیکاره نسوه بیا توبه وکاږه، دخدای سره مات سوی تعلق بیرته قائم که، (په شعر کی) فرمائی

یہ رشتہ محبت کا قائم ہی رکھے
جو سوبار ٹوٹے تو سو بار جوڑے

ترجمہ: دغه (دخدای سره) دمحبت تعلق دی قائم وساتی، که دغه تعلق (دګناووپه خاطر) سل واری مات سی نو سل واره دې بیرته (په توبه کولو سره) قائم کړی.

کوښښ خو وکه چې توبه ماته نسی، دګناوو څخه دځان ساتلو خپل پوره کوښښ وکه لاکن که بیا هم هرواری توبه درڅخه ماته سی نو ناامیده کیږه مه، په وار وار بیا توبه وکاږه. دتوبې دقبلیدو دپاره دونه کافی ده چې سړی دهغه ګناه څخه لیری سی، په زړه کی پښیمانه سی او ټینګه اراده وکی چې بیا به هیڅکله دغه ګناه ونه کم یعنی په زړه کی به ئې بیا دګناه کولو اراده نه وی نو داسی توبه وه اللّٰه جَلَّ جَلَالُهُ ته قبوله ده. لهٰذا هیڅکله مه ناامیده کیږه، که ګناه درڅخه وسی نو ژړا او زاری شروع کړه، دخدای ماسوا بل څوك سته چې موږ وبخښی، دخدای ددرباره ماسوا بل کوم دربار دی چې موږ ورسو. لهٰذا ټوله عمر کوښښ کول دی، دخدای درضا دپاره کوښښ کول پکار دی.

تمام عمر تڑپنا ہے موجِ مضطر کو
کہ اس کا رقص پسند آگیا سمندر کو

ترجمہ: ټوله عمر به څپه رقص کوی، ځکه چې دهغه رقص دسمندر خوښ سو.

دبزرګانو سره مشوره وکی، داولیاوو په صحبت کی کښینی، خپل ایمان او یقین مظبوط کړی، دمرګ فکر وکړی، دقیامت او ددوږخ فکر وکړی، دګناوو څخه دځان ساتلو طریقې داولیاوو څخه وه پښتی، دهغو سره واوسیږی او دګناوو دماحول

او اسبابو څخه ډير ليرى واوسيږى كنې سرې و ګناوو ته وركشيږى لكه په يو پيشى چى لس حجه وكې او بيا يو موږك وربښكاره كړې نو دهغې پيشى بريتونه به دستى ورته شخ سى او غر غر غر به شروع كړى، همدغه رنګه نفس په مثل دپيشى دى كه دګناوو څخه ځان ساتې نو دګناوو داسبابو څخه ليرى اوسه كنې نفس به په مثل دپيشى دګناوو وخواته وركش سى. كوم سرې چى ځان دګناوو وه اسباب ته نژدې ساتى هغه (داسى دى) لكه دخداى غضب او لعنت ته چى ځان ورنژدې كوى. اللہ جَلَّ جَلَالُہٗ ارشاد فرمائى

﴿تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا﴾ (سيپارہ۲سورت بقرہ)

دا داللّٰه حدود دى دې ته ورنژدې كيږه لامه.

فكر وكى كه څوك كم عمره انجلى (په كوركى) دمزدورى دپاره ودروى، نن سبا دلته(په جنوبى افريقه كى) چى كوم غريبان اوسيږى (هغه عيسويان دى دلته) مسلمانان خو دمزدورى دپاره پيدا كيږى نه، داغه عيسويانى انجونى پيداكيږى، نو پنځلس يا شل كلنه انجلى مزدوره كړى په هغې كالى پريولى، شپه او ورځ پر هغې باندى نظر مبتلى او وائى چى دا خو توره ده، بدشكله ده، هر څنګه چى وى دغه په ياد وساتى په دې كى خطر دى، په ښه غوږ يې واورى چى پيشى هر څونه كمزوره سى، ريږدى، تګ هم نسى كولاى لاكن دموږك په ليدو سره ددې دماغ خرابيږى. په دغه خاطر بزرګانو فرمايلى دى چى

*بھروسہ کچھ نہیں اس نفسِ امّارہ کا اے زاہد*
*فرشتہ بھی یہ ہوجائے تو اس سے بدگماں رہنا*

*ترجمہ*: باور هيڅ نسته پر دې نفس امّاره باندى اې زاهده، كه نفس ملائكه هم سى نو به هم ځنى بدګُمانه يې.

نفس كه ملائكه هم سى، ښه تهجد ګزاره سى لاكن ته هيڅكله ښځو او

لغړزنو هلکوانو ته مه ورنژدې کیږه، ددوی څخه ځان ساته. په دغه خاطر زه درته وایم چی په خرید او فروش کی، په کورو کی، په بازارو کی، په دفترو کی ددوی څخه لیری اوسی، په خاصه دعُمرې څخه چی بیرته راځی نو په طیاره کی وه ائیرهوسټسو(په طیاره کی کار کونکو ښځو) ته دخور خور په ویلو سره خبری مه کوی. بعضی خلګ وائی چی دخور په ویلو سره به دا په موږکوك بوتل وغیره وچیښی لاکن زه درته وایم چی ته صبر وکه، وه بدن ته تکلیف ورکه لاکن هغې ته په کتلو سره خبری مه کوه، دنظر حفاظت ورځخه وکه کنې دعمرې ټوله نور به دی ضایع سی.

که حکومت دغه اعلان وکی چی درې ورځی اُوبه نه راځی او تا لوړه داُوبو ټانکی ډکول شروع کړه لاکن لاندی دی دټانکی نلکې خلاصی پریښولې، ټوله شپه دی ټانکی داُوبو ډکه کړه لاکن سهار چی دی وکتل نو ټوله اُوبه توی سوی وې او په ټانکی کی هیڅ هم نسته، همدغه رنګه موږ حج او عمره، ذکر او تلاوت خو ډیر کوو لاکن دحواسِ خمسه (پنځو حواسو) کومی نلکې چی په موږکی سته هغه خلاصی پریږدو یعنی دغوږ په نلکه مو غزله واوریدل، غیبت مو واوریدی، دسترګه په نلکه مو نامحرمه ښځو ته وکتل، دژبه په نلکه مو غیبت وکی، درواغ مو وویل دغه رنګه دعبادتو ټوله نور ددغه نلکو دلاری څخه ووځی، په دې خاطر موږ ته داللّٰهﷻ دنامه خوند نه حاصلیږی، زموږ دعبادتو نور دوام نه لری، د﴿**رَبَّنَا اَتۡمِمۡ لَنَا نُوۡرَنَا**﴾څخه معلومیږی چی دنور دوام هم نعمت دی.

مولانا رومی رحمة اللّٰه علیه فرمائی کوم خلګ چی ګناه نه پریږدی دهغو دذکر، دتهجد او دجمله عبادتو مثال داسی دی لکه دشپې چی یو کور ته غل ورواوښتی، دکور خاوند په خبر سو چی زما کور ته غل راغلی دی، په اولو وختو کی به دډبری په مړلو سره روښنائی کیدل، دهغه ډبری نوم چقماق وو، دکور خاوند ډبره

ومړل دروښنائی دپاره چی زه غل وپیژنم لاکن غل هم ډیر هوښیار وو غل چی څونه شیان راټولول نو ډېری ته به یې هم کتله چی څنګه یې ومړی نو زه به ګوته پر کښیږدم، چی هغه به روښنائی وکړه غل به ګوته پر کښیښول او روښنائی به یې مړه کړل او په توره شپه کی یې پر آرامه غلا وکړل او آخر یې ټوله شیان یووړل. همدغه رنګه شیطان زموږ دعبادتو پر نور باندی ګوته کښیږدی یعنی موږ په ګناوو کی په اخته کولو سره زموږ ټوله سرمایه(عبادتونه) راڅخه یوسی.

مولانا رومی رحمه اللّٰه علیه فرمائی چی څونه غنم کرل او غنم راټولول ضروری دی هغونه دموږ کانو څخه هوښیار اوسیدل هم ضروری دی کنې ټوله غنم به درڅخه یوسی. په دغه خاطر زموږ بزرګان دقرآن پاك او دحدیث پاك په رڼا کی دتقوا داختیارولو اهتمام ورښوی. که عبادت دسړی لږوی مګر هغه تقوا داره وی نو به دخدای دوست سی، نفلونه که څه هم ډیر نه کوی، ټوله شپه په تهجد کی نه وی ولاړ، (بس) دماخوستن دلمانځه کولو وروسته بیده سی او دسهار لمونځ په جماعت وکی، یو څه تلاوت وکی، یو څه ذکر وکی لاکن یوه ګناه هم نه کوی، دګناوو څخه ځان ساتی، هر وخت پر خپل نفس باندی پام کوی نو دغه سړی دخدای دوست دی او یو سړی دی چی ټوله شپه په تهجد کی ولاړوی لاکن سهار چی کله دوکان ته ولاړی او یوه ښځه دیو شی درانیولو دپاره راغله بس هغې ته یې کتل شروع کړل یعنی بدنظری یې شروع کړه او کله هغې ته خور وایی کله خاله ورته وایی، په خوند خوند خبری ورسره کوی نو دغه سړی دخدای دوست نسی کیدای. په ګناوو سره دعبادتو ټوله نور ختم سی.

ما دغه عرض کاوه چی ټوله مخلوق داللّٰهﷻ عیال دی، دخدای تر ټولو لوی دوست هغه دی کوك چی مخلوق په عذاب نه کړی، دمخلوق سره مخلص وی تردې حده چی دکافر سره هم مخلص وی یعنی داللّٰهﷻ دحُکم باید پابنده اوسی. دیوې

کافری ښځی سره هم زنا کول روانه ده، بعضی خلګ شیطان خطاباسی چی دغه ښځه خو کافره ده، دا خو مالِ غنیمت دی پورته ئې که، هغه یې پر جهاد باندی قیاس کوی چی په جهاد کی به څنګه کافرانی ښځی بندیانی سوې او وه مسلمانانو ته به په مالِ غنیمت کی ورکړل سوې، اُوس هغه قانون ختم سو، په بین المللی معاهدې سره اُوس مینځه او غلام جوړول ختم سول. خُلاصه یې دغه ده چی وه کافری ښځی ته کتل هم روانه دی، یو کافر لغړزنی هلك ته کتل هم روا نه دی. دالله ﷻ دمخلوقاتو حقوق دمسلمان پر ذمه دی.

کله چی اصحابِ کرام دشام ملك دفتح کولو دپاره روان وه نو عیسویانو دهغو په لار کی ښائستې انجونی ودرولې چی کله مسلمانان وه دغه انجونو ته وګوری نو ددوی ایمانونه به کمزوره سی او دالله ﷻ کومك به څنی ایسته سی لاکن دمسلمانانو دفوج قومندان دغه آیت (وټولوته) وویلی

﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ﴾ (سیپاره۱۸سورت نور)

اې نبی! وایمان والو ته ووایه چی هغه خپلی سترګی کښته وساتی.

اصحابو خپل نظر کښته کی او تیر سول، یوه اصحابی هم دیوې عیسوی انجلی حُسن ته نه دی کتلی، هغو انجونو وخپلو پلرو ته وویل تاسی چی موږ دکوم مقصد دپاره لیږلی وو تاسی ټوله په هغه کی ناکامه سواست، دغه خلګ خو ملائکی دی ملائکی، هغو خو تر سترګو پورته هم موږ ته نه دی کتلی.

نو زما دوستانو! دټوله مخلوق سره مُخلص اوسی، څونه مخلوق چی دی هغه ټوله په خپل دعاوو کی شامل کړی، څنګه؟ اې الله وکافرانو ته ایمان ورکړې، لکه څنګه چی یوڅوك دنالایق زوی دپاره (دهغه) وپلار ته ووایی چی ته پر ده باندی رحم وکه (همدغه رنګه) ته وه خدای ته داسی ووایه چی دټوله دنیا کافرانو ته ایمان ورکړې او دایمان لرونکو دپاره (داسی) دعا وکه چی اې الله وایمان والو ته تقوا ورپه نصیب

کړې یعنی خپل خاصه دوستی ورته عطا کړې او څوك چی په تکلیف اخته دی هغوته عافیت ورکړې، څوك چی مریضان دی هغوته صحت ورکړې، تردې حده چی دمیږیانو دپاره هم دعا وکی چی اې اللّٰه په غارو کی چی کوم میږیان دی پر هغو باندی هم ورحمیږې، دماهیانو دپاره هم دعا وکی چی اې اللّٰه په دریابو کی په سمندرو کی چی کوم ماهیان دی پر هغو باندی هم رحم وکړې. داولیاوو خو دغه کار وو چی دټوله مخلوق دپاره یې خیر غوښتی او احترام یې کاوه. وګوره که ستا دیو چا سره دوستی ده نو ته دهغه سړی دپیشی هم احترام کوې، دهغه دسپی هم احترام کوې. دخدای دټوله مخلوق چی څوك خیر خواه سی اللّٰه جَلَّ جَلَالُهُ هغه خپل محبوب جوړ کړی. یوې ښځی ته هم مه ګوری، یوې کافری ښځی ته هم په بدنظر مه ګوری، دټوله مخلوق سره مُخلص اوسی، انشاء اللّٰه تعالیٰ ډیر ژر به داللّٰه جَلَّ جَلَالُهُ محبوب وګرځی. رسول اللّٰه ﷺ فرمائی

﴿اَلْخَلْقُ عَیَالُ اللّٰهِ فَاَحَبُّ الْخَلْقِ اِلَی اللّٰهِ مَنْ اَحْسَنَ اِلٰی عَیَالِهٖ﴾(مشکوٰۃ صفحہ ۴۲۵)

ټوله مخلوق داللّٰه عیال دی، لهٰذا داللّٰه جَلَّ جَلَالُهُ تر ټولو محبوب هغه څوك دی چی دخدای دمخلوق سره ښه اخلاق وکی.

یوه ورځ حضرت ډاکټر عبدالحئی صاحب کوم چی دحضرت تهانوی رحمة اللّٰه علیه ډیر خاص خلیفه وو راته وفرمایل چی یوه ورځ یې خپلی ښځی وه حکیمُ الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه ته وویل چی زه سبا دخپلوانو کره ځم ته پر اته(۸) بجې زما چرګان خلاص که دانه او اُوبه بیا ورکه، اُوس نو حکیمُ الاُمَّت چی دپنځلس سوه(۱۵۰۰) کتابو لیکونکی دی دهغه څه په یادیږی چرګان خلاصول او اُوبه ورکول، دحضرت صاحب هیر سول، خانقاه ته راغلی، هره ورځ اندازاً شپیته خطه (دمریدانو داصلاح دپاره) راتلل، په هغوکی به دلوی لوی عُلماوو خطونه وه، دخطو جواب ته کښېنستی نو هیڅ جواب یې پر زړه نه راتلی، دقرآن شریف تفسیر بیانُ القرآن لیکلو ته کښېنستی نو هیڅ مضمون یې پر زړه نه

راتلی، قلم یې ودرې دی، په زړه کی تاریکه ورته محسوسه سول نو وه خدای ته یې وژړل چی اې خدایه! زما څخه کومه غلطی وسول، ته یې په زړه کی راواچوه چی توبه وکاړم. حضرت تهانوی رحمة اللّٰه علیه به فرمایل چی کله دخدای سره دانسان تعلق قوی سی نو په زړه کی بړغ پر کیږی چی دغه وکه او دغه مه کوه.

تم سا کوئی ہمدم کوئی دمساز نہیں ہے
باتیں تو ہیں ہردم مگر آواز نہیں ہے

ترجمہ: (اې اللّٰه) ستا غوندی ملګری او رازداره څوك نسته، (په زړه کی) خبری خو هر وخت سته مګر آواز نسته.

نو په زړه کی (دخدای دطرفه څخه پر حضرت صاحب) بړغ وسو چی اې اشرف علی تا زما یو مخلوق بندکړی دی، چرګان وږی دی، د اته(۸) پر ځای نه(۹) بجې سوې، یو ساعت کیږی چی هغه ناقراره دی، زما یو مخلوق ستا په خاطر په تکلیف دی، بیا تاته څنګه علم درکم، په داسی حال کی ستا څخه څنګه سرکاری(ددین) کار واخیستل سی، ورسه ژر چرګان خلاص که، حضرت تهانوی صاحب ور وځغستل، دخانقاه څخه ولاړی چرګان یې خلاص کړل او ژر یې دانه او اُوبه ورکړې، چی بیرته راغلی نو ټوله علم یې بیرته پر زړه جاری سو. زما دوستانو! وه چرګانو ته دتکلیف درسیدو قصه خو اورو لاکن نن موږ پر خپلو ښځو باندی ژوند حرام کړی دی، نو وواياست چی موږ څونه دالله ﷻ ناراضی او غضب رانیسو. ما خو نن داغه مضمون بیانوی لاکن ددې سره دخدای په فضل سره دا نور مضمونونه هم بیان سول. اُوس اصل موضوع شروع کوم، اللّٰه ﷻ دښځو په باره کی سفارش نازل کړی دی. په قرآن شریف کی اللّٰه تعالیٰ فرمائی

﴿وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ (سیپارہ۴ سورت نساء)

دخپلو ښځو سره ښه وضعیت کوی.

ولی صاحبه که دملك صدراعظم تاته خط ولیکی چی دخپلی ښځی سره ښه اخلاق کوه ځکه چی ستا ښځی زما دلور سره یو ځای سبق ویلی دی نو ووایه بیا ئې ته په عذابولای سې. اې زما وروره که یو ببر شیر ستا سره روان سی او درته ووایی چی نن یوې ښځی ته ونه ګورې کنې پوه سه که ما صرف یوه نعره درباندی وکړه نو ستا به قبض مات سی، نو ته به څه وکې، ته به دواړه لاسونه پر سترګو کښیږدې او ورته وبه وایې چی شیر صاحبه! ګوره بدګُمانی ونه کړې زه یوې ښځی ته هم نه ګورم. آه دیو مخلوق(شیر) څخه موږ دونه بیریږو.

دحیدرآباد(پاکستان) باغ وحش ته موږ شیر دلیدو دپاره ولاړو، زه شیر دلیدلو ډیر شوق لرم خصوصاً هغه شیر چی ږیره هم لری او پټه وریښتان یې هم وی بلکل دشیخِ کامل په شکل وی دهغه نوم ببر شیر دی، دخدای قدرت وو چی په هغه ورځ دمزدورانو (دشیر دقپس) دروازه بندول هیره سول، اعلان وسو چی څونه خلګ په باغ وحش کی دی هغه دی ټوله وځغلی، دغه وخت شیر آزاد دی، پر هر یوه حمله کولای سی، تاسی پوه سی چی دکوم سپین ږیرو لکړی په لاس کی وې په ډیر مشکل سره یې تګ کاوه هغو داسی ځغستل چی اوسیہ یې هم وشرمول، ځان پر سرړی باندی دونه ګران یی، بیا وروسته اعلان وسو چی شیر قپس ته ننوتی، قپس ته مو غوښی وروانچولې په دغه خاطر شیر قپس ته ننوتی او دروازه ددباندی څخه پسی وتړل سول. وګوری دشیر څخه موږ څونه بیریږو مګر چاچی شیر پیدا کړی دی دهغه څخه باید څونه وبیریږو. شیر چی نعره وکی نو مځکه وریږدوی نو دالله ﷻ به څنګه ږغ وی چی کله دقیامت په ورځ اعلان وسی ﴿**خُذُوْهُ**﴾ ونیسی دغه نالایق ﴿**فَغُلُّوْهُ**﴾ په زنځیرانو یې وتړی ﴿**ثُمَّ الْجَحِیْمَ صَلُّوْهُ**﴾ بیائې ودوږخ ته وغورځوی. څنګه ږغ به وی، دقیامت به څنګه ورځ وی. نن دنفس دخوند دپاره موږ هرځای خوله اچولو ته تیار یو لاکن ددې نتیجه څه شی دی دهغه فکر نسته راسره.

نو دالله جل جلاله سفارش دی چی دخپلو ښځو سره ښه اخلاق کوی، ښځه دی ځوانه وی که سپین سرې وی، که ئې په خوله کی غاښونه هم نه وی بلکې چی زړه سی نو نور هم زیات دهغې خیال ساته، چی ځوانه وه خو ډیر محبت دی ورسره وکی اُوس چی یې غاښونه ووتل، بارخوګان یې راوزړیدل نو هغه حقیره بولې دا ښه خبره نه ده. ددې سپین سری هم خیال وساته ځکه چی ستا سره سپین سرې سوې ده، په ځوانی کی دی دخپل طبیعته څخه محبت ورسره کاوه اُوس دخدای دحُکم په خاطر دهغې سره شفقت وکه. که ئې پر سر درد سی نو دوا ورته راوړه، پر هغې باندی رحم وکه.

مولانا ګنګوهی رحمة الله علیه دبُخاری شریف په درس کی ټوله ژوند یوه قصه کول، بله قصه یې په یاد هم نه وه، کله چی به ئې شاګردان دسبقانو په خاطر ستړی سوه نو ورته وبه ئې ویل چی څه تاسی یوه قصه واوری او شاګردان به یې څوك وه دحضرت شیخُ الحدیث مولانا ذکریا صاحب پلار مولانا یحییٰ صاحب او زموږ دشیخ استاد مولانا ماجد علی جونپوری او ډیر نورو شاګردانو به قصه په اوریدو سره وخندل هغه کومه قصه وه، په ډهلی(هندوستان) کی یو سپین ږیری او سپین سرې اوسیدل، اولاد یې نه درلودی، داتیا(۸۰)کالو سپین ږیری داتیا(۸۰)کالو سپین سرې، په یوه پټوکی دواړه بیدیدل داسی محبت یې وو، سپین ږیری به بیله دهغې داجازې بولی هم نه کولې، کله چی به بولو ونیوی نو ورته ویل به یې چی اې ښځی زه بولی کوم سپین سری به ورته وویل هو هو وې که، مولانا ګنګوهی صاحب چی به دغه قصه وکړل نو چپ به سو خندله به یې هم نه او شاګردان به یې په خندا سول.

بعضی خلګ په دې غم اخته دی چی زموږ دمور و پلار څخه غلطی وسول، زما ښځه باید چی څونه ښائسته وای هغونه ښائسته نه ده، مور زما دپاره غلط انتخاب وکړی، سترګی یې سمی نه وې، عینکی یې پر سترګو وې چی زما ښځه یې کتل، مور

ته هم خوشکی کوی چی یولس نمبره عینکی دی پر سترګو وې خطا وتې. پردې باندی زه عرض درته کوم چی ټوله جوړې په قسمت کی لیکلی دی، دخدای دلیکنی ماسوا هیڅ نه کیږی، دچا په قسمت کی چی خدای هر څه ولیکل پر هغه باندی راضی اوسه، دغه ښځی به په جنت کی تر حورو ډیری ښائسته کړل سی.

علامه آلوسی دتفسیر روحُ المَعَانی د اووه ویشتمی سیپارې دسورتِ رحمٰن په تفسیر کی یو روایت نقل کړی دی چی حضرت اُم سلمٰهؓ دنبیﷺ څخه پوښتنه وکړه چی په جنت کی به حوری ډیری ښائسته وی که مُسلمانانی ښځی؟ اُم سلمٰهؓ ددې سوال په کولو سره یې تر قیامته پوری پرښځو باندی احسان وکی. دغه حدیث چی زما څخه نن اوری وخپلو ښځو ته یې ضرور وړاندی کی، دغه سوال یې ولی ځنی وکی، دټولو ښځو دطرفه څخه یې دوکالت حق ادا کی ځکه چی ښځی ګوری چی کله خلګ یوه ښائسته ښځه پر سړك باندی ووینی نو په هغه ورځ خپلو ښځو ته سم نه ګوری، که ورته ګوری هم نو لږ په سپك نظر ورته ګوری، دا دبدنظری دګناه بدبختی ده، دوریجو او غوښو دلیدلو وروسته بیا دسړی دال(پاتیړ) نه خوښیږی، پر دال راپه یاد سول یو شاعر کوم چی دغوښو عاشق وو وه خپلی ښځی ته یې وویل.

پکاؤ گی جس دن تم ارہر کی دال
سمجھ لو اسی دن مِرا انتقال

*ترجمہ:* په کومه ورځ چی ته پاخه کړې دال، پوه سه چی په هغه ورځ دی زما وفات.

نو رسول اللهﷺ ورته وفرمایل چی اې اُم سلمٰه! په جنت کی به مسلمانانی ښځی تر حورو هم ډیری ښائسته کړل سی، هغې پوښتنه ځنی وکړل ﴿**وَبِمَ ذَاکَ**﴾ داسی به په څه خاطر وی، نبیﷺ ورته وفرمایل چی حورو لمونځونه نه دی کړی، روژې یې نه دی نولی، دمړو خدمت یې نه دی کړی، د اولاد دپیداکیدو تکلیف یې نه دی وړی او مُسلمانانو ښځو لمونځونه کړی دی، روژې یې نیولی دی، حج یې کړی

دی، دمړو خدمت یې کړی دی، د اولاد دپیدا کیدو تکلیف یې پر ځان وړی دی. دحدیث پاك الفاظ دغه دی

﴿بِصَلَا تِهِنَّ وَصِيَامِهِنَّ وَعِبَادَتِهِنَّ اَلْبَسَ اللّٰهُ وُجُوْهَهُنَّ النُّوْرَ﴾ (روح المعانی صفحه۱۲۶ جلد۲۷)

ددوی دلمونځو، روژو او ددوی دعبادتو په خاطر به ددوی پر مخانو باندی اللّٰه ﷻ خپل نور واچوی چی دا به اضافی(ښائست) وی.

په حورو کی به دغه نور نه وی، اللّٰه تعالیٰ چی پرچا باندی خپل نور واچوی دهغه دحُسن به څه حال وی. ددنیا ژوند څوشپې دی، په سفر کی سړی ته سمی چای نه رسیږی نو هغه وخت سړی څه وایی چی ځه وروره هر څنګه چای چی دی وې چیښنه، تودې اُوبه دی یی دریزش او زُکام څخه خو به خلاص سې، کور به بیا سمی چای وچیښې. همدغه رنګه ددنیا ژوند هم یو سفر دی دلته هر څنګه ښځه چی دی په نصیب سوې ده دهغې سره ژوند تیر که، په جنت کی به داغه ښځه تر حورو ډیره ښائسته کړل سی. داسی نه چی ښځه دی ډیره ښائسته نه ده نو هغې ته هر وخت پیغور ورکوې، په عذابه وې یې، فکر وکه که ستا لور ډیره ښائسته نه وای نو تا څه غوښتل، آیا تا دغه خوښول چی ستا زوم دا په عذاب کړی ووایاست دوستانو! پر خپل زړه باندی لاس کښیږدی که ستا لور ډیره ښائسته نه وی یا ډیر درد ورځی نو به ته څه وغواړې چی ستا زوم هغې ته وهل ورکړی، په سوټې یې ووهی، ښکنځل ورته وکی او ورته ووایی چی ته چیری زما په قسمت کی نوشته وې، ته خو بنګۍ یې.

ماته یو پیسه داره سړی راغلی او راته وې ویل چی زما دلور دپاره یو تعویذ راکه، هغې ته درد ډیر ورځی، دهر چا کور ته چی ورسی نو څه معلومه ده چی دهغه څخه به څونه وهل وخوری. تر اوسه یې واده هم نه دی سوی او دونه دلور فکر. زما دوستانو! زموږ ښځی خو هم دیو چا لوڼی دی، دخپل لور دپاره تعویذ اخلې که یا، زما دوستانو او بزرګانو راته ووایاست که ستاسی لور زوم درپه عذاب کړی، دهغې وخواته

ونه ګوری یا پر یوه خبره باندی خوشکه ورته وکړی، ښځه خبری ورسره کول غواړی او دده تسبیح په لاس کی دی. ښځه بیچاره ټوله ورځ ستا په انتظار وه او ته په خپل کار اخته وې یا دی په دوکان کی ټوکران خرڅول، دا ټوله ورځ درته تږې وه چی اُوس به می میړه راسی نو زړه به ورسره خوشحاله کم مګر ته چی کورته راغلې نو تسبیح دی راواخیستې، داسی (بزرګ سوې) چی بابا بایزید بُسطامی او بابا فریدُالدین عطار غوندی اولیاء هم درڅخه وشرمیږی او دا خبره واوری کورته څنګه داخلیږی سترګی پټی تسبیح په لاس کی لکه خواجه معینُ الدین چشتی اجمیری چی کور ته راننوزی (البته دغه خبره په ذهن کی وساتی چی دغه اولیاءِ کرام سترګی پټی په ترش مخ کور ته نه داخلیدل بلکې پر سنت طریقه په خندا او خوشحاله مخ به کورته داخلیدل خو دا خبره موږ دزړه ددرده فقط ستاسی دپوهیدو دپاره کړې ده) تاسی وواياست چی آیا دغه دښځو حق دی؟

حضرت عائشه‌ﷺ فرمائی چی رسول اللهﷺ به کله کور ته راننوتی نو په خندا به راننوتی. (دخلګو په رقم) سترګی پټی پر عرشِ عظیم باندی به نه اوسیدی بلکې پر مځکه باندی د اوسیدونکو حق به یې هم ادا کاوه، کنې دنبیﷺ سره دأُمّت څونه غم ورسره وو، هر وخت دکفارو سره جنګ، یو جهاد ختم سو تر اُوسه توره ایښول سوې نه وه چی دبل جهاد اعلان وسو لاکن پر دې سربیره هیڅکله داسی نه ده پیښه سوې چی نبیﷺ دی کور ته په خندا نه یی داخل سوی. وه خپلو ښځو ته په خندا ورتلل دغه سنت نن پاته سوی دی، کوم چی بې دینه خلګ دی هغه لکه فرعون چی راسی، لوی لوی بریتونه، سترګی سرې کی چی پر ښځو باندی لږ سام ولویږی او داسی نه وی چی ښځه ماته یو څه ووایی په دې خاطر پر هغې باندی دسام لویدو په خاطر دنمرود او فرعون په شان (کورته) داخلیږی او کوم چی دینداره دی هغه دبابا بایزید بُسطامی، خواجه معینُ الدین چشتی او بابا فریدُ الدین عطار په شان (کورته) داخلیږی، په مراقبه

کی سترگی پټې نیولی لکه پر عرش چی اوسیږی، لکه دمځکی خبری چی پیژنی نه، دغه دواړه قسمه ژوند دسنت خلاف دی. کورته چی وخپلی ښځی ته ورځې نو په خندا ورځه، دهغې سره خبری وکه، هغه وخت تر تسبیح ویلو ډیر ثواب په دغه کی دی چی دښځی حق ورادا کړې. رسول اللهﷺ فرمائی چی تر ټولو دښه اخلاقو خاوند هغه څوك دی دچا اخلاق چی دخپلی ښځی سره سم وی. موږ خو په دوستانو کی ښه خندا کوو، مسخرې کوو او چی ښځی ته ورسو نو بزرگ راڅخه جوړسی، مخ پړسولی لکه خندا چی مو زده نه ده او ښځه بیچاره حیرانه یی چی یاالله زه گرده ورځ دده په انتظار وم چی ماښام به راسی دمیړه سره به خبری وکم، ورسره وبه خاندم مگر دده څه خو دډبری بت جوړ دی. دغه (دښځی سره) خندل او خبری کول په عبادت کی داخل دی، ټوله شپه نفل کول او دښځی سره خبری نه کول دغه د اصحابو دسنت هم خلاف دی.

یو کم عمره اصحابی ته یو بزرگ اصحابی ورغلی، هغه کم عمره اصحابی عبادت شروع کړی نو هغه بزرگ اصحابی ورته وفرمایل﴿**اِنَّ لِضَیُفِکَ عَلَیُکَ حَقًّا**﴾ ستا دمیلمه پر تا حق دی، زه ستا میلمه یم، زما سره خبری وکه، بیا ئې ورته وفرمایل چی ورسه اُوس نو دخپلی ښځی حق ادا که ﴿**اِنَّ لِزَوُجِکَ عَلَیُکَ حَقًّا**﴾ دهغې سره هم خبری وکه. نو زما دوستانو! ما عرض درته کاوه چی حضرت تهانوی رحمة الله علیه فرمائی چی اللهﷻ دخپلو ښځو سره دښه اخلاق کولو په باره کی په دغه آیت ﴿**وَعَاشِرُوُهُنَّ بِالُمَعُرُوُفِ**﴾کی سفارش نازل کړی دی، کوم خلگ چی دخدای سفارش نه منی دهغو دپاره دحضرت تهانوی رحمة الله علیه الفاظ دی، دا زه نه وایم، حضرت تهانوی رحمة الله علیه چی دخپل زمانې مُجدّد وو هغه فرمائی چی څوك خپلی ښځی په عذابه کړی، دهغو سره بد ژوند وکی او دااللهﷻ سفارش ونه منی نو دا بې غیرته خلگ دی. ځکه چی ښځه کمزوره ده، ستا په قبضه کی ده، پلار او ورور یې ځنی لیری دی او د دوو درو کوچنیانو وروسته خو نوره هم کمزوره سی او نارینه خو

په هګکۍ خوړلو سره پهلوانان سی بیا پر ښځو باندی پهلوانی ښکاره کوی، خپل طاقت پر ښځه باندی ښکاره کوی، وایی چی صاحبه څه وکم! زه په درد کی لیونی سم، ښځی ته وایم چی دسمال راپریوله خو دا یې نه پریولی، نن می ورته وویل چی دسمال راپریمینځه لاکن دې نه دی پریمینځلی. اې زما وروره! تا ښځه مزدوره ولی بللې ده، خپل دسمال خپله پریوله، ماندینه خو ددې دپاره نه ده چی بس ستا کالی به درپریولی، خپله یې پریمینځه لاکن دامه په عذابه وه، په درد کی مه لیونی کیږه.

زما یو دوست دی په کراچی(پاکستان) کی هغه وایی چی کوم خلګ دغه خبره کوی چی ما ته درد ډیر راځی، زه په قهر کی لیونی سم، دا غلطه خبره ده، په قهر کی هیڅکله څوك نه لیونی کیږی، درد ډیر هوښیار دی، درد پر کمزوره باندی لیونی کیږی، دیو سیر طاقت خاوند دنیم سیر طاقت پر خاوند باندی خپله خوشکه ښکاره کوی لاکن په هغه وخت کی که دیو سیر څخه دزیات طاقت خاوند یو پهلوان راغلی لکه محمد علی بوکسر غوندی او یو سوك ئې ورښکاره کړی نو هغه وخت یې درد څه وایی بخښنه راته وکه بخښنه راته وکه او پیشی ځنی جوړه سی، اُوس یې دغه عقل دکومی خوا پیدا کی، اُوس خو په درد کی لیونی وو. نو معلوم سول چی په درد کی هیڅوك نه لیونی کیږی دا ټوله دبې عقلی خبری دی. بیاهم د قهر علاج درښوم.

دجدې(سعودی) څخه ماته کراچی(پاکستان) ته یو خط راغلی (لیکلی وه) چی په ما کی او زما په ښځه او کوچنیانو کی خوشکه ډیره ده، ټوله کورنۍ په یو عذاب اخته ده، ما ورته ولیکل چی﴿**بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ**﴾ اووه(۷) واره ووایه او پر ډوډی باندی یې دم که هغه وخت چی دسترخوان اوارسی او ټوله وډوډی ته کښینی، او په دم کولو کی دناړو لړ غوندی ذرې هم باید پر ډوډی ولویږی مګر لږ غوندی داسی نه چی یوه توله (ناړی) پکښې توکړې، بیا ئې څوك خوری. مُلّا علی قاری رحمة اللّٰه علیه دمشکوٰة په شرح کی لیکلی دی چی﴿**خُرُوۡجُ الۡبُزَاقِ مِنَ الۡفَمِ**﴾ ددم کولو په

وخت کی دی دنارو لږ غوندی ذرې (په ډوډی کی) ولویږی. هغه (دسعودی) خاندان زما پر خبره باندی عمل وکی، یوه میاشت وروسته خط راغلی، لیکلی یې وه چی دالله درحمٰن او رحیم دنامه په صدقه په موږ ټولو کی درحمت شان غالبه سو، زموږ خوشکی ختمی سوې، زموږ طبیعتونه نرم سول. داللهﷻ ډیر لوی نوم دی.

زما دوستانو! صلاح خو وکی، نن دبزرګانو سره، داولیاوو سره یا داولیاوو دخادمانو سره موږ تعلق پریښوی، په خپله خپل علاج کوو نو فائده به څنګه وی. هیڅ روحانی مرض(ګناه) داسی نه دی چی هغه ښه نسی، ته پوښتنه وکه او عمل په وکه، دځلویښتو کالو دګناوو عادت که هم څوك ولری نو (دپریښولو دپاره) دی صلاح وکړی انشاء الله تعالیٰ که ښه نه سو نو بیا وواياست چی حکیم محمد اختر په مسجد کی څه ویل. لاکن مریض په خپله نه ښه کیږی، دډاکټر سره دی صلاح وکړی (همدغه رنګه) کوم روحانی ډاکټران(اولیاء) چی پر سنت باندی دعمل کونکو بزرګانو تربیت یافته او اجازت یافته دی دهغو سره (دګناوو دپریښولو په باره کی) صلاح وکړی انشاء الله تعالیٰ ګناوی به درڅخه پاته سی.

نو ما دغه درته ویل چی کوم خلګ خپلی ښځی په عذابه وی که دهغې پنډ پنډ پهلوانان وروڼه دمحمد علی بوکسر غوندی راسی او درته ووایی چی وروره ولی دا زموږ خور راپه عذابه وې، بیابه وګورو چی څنګه یې په عذابه وې. دوستانو دخدای څخه وبیریږی، ګوری دآسمان څخه یو څوك موږ ته ګوری چی دی زما دبنده(خپلی ښځی) سره څنګه ژوند کوی. دښځو زړه دونه نازك وی که دی فقط څه ورته وویل چی نن زه ډیر ستړی یم، ستا څه پاته دی ګرده ورځ بیده یې، نو دا ټوله شپه ژاړی، خوب نه ورځی، دهغې فریاد آسمان ته رسیږی چی یاالله زه دده دمحبت وږې وم چی راسره وبه خاندی، خبری به راسره وکی لاکن دی خو داسی ستړی راسی چی دستی بیده سی. میړه بیده یی او دا ژاړی، (پوه سی چی) ددې اُوښکو ته اللهﷻ ګوری، داسی ظالم مړونه ما په

سخت عذاب کی اخته ولیدل.

یو سړی صرف په دې خاطر چی ښځه یې توره وه بدرنګه وه، صرف دنفسانی خواهش په خاطر یې پر شپږو کوچنیانو سربیره هغې ته طلاق ورکی. دا اوریدلې قصه نه ده، په خپلو سترګو می لیدلې ده، سړی به دغه ویل چی زما مور غلطی کړې ده، زما ددې سره ګزاره نه کیږی، اُوس زه دډیری ښائستې ښځی سره واده کوم. ښځی یې ورته وویل چی زه دی نه وم خوښه نو دغه شپږ کوچنیان دکومه سول، اول سر به دی ماته طلاق راکړی وای نو زما واده به (بل ځای) په آسانه سوی وای، اُوس چی دی دشپږو اولادو مور کړم بیا طلاق راکوې، میړه ورته وویل چی بس زه مجبوره یم، اُوس یې نور نسم برداشتولای، اُوس زه دیوې ښائستې ښځی سره واده کوم او درې طلاقه یې ورکړه، کله چی هغه ښځه دشپږو کوچنیانو سره (دکوره څخه) راووتل نو یې وآسمان ته وکتل. پرداسی حال باندی دیو بزرګ شعر دی

ہم بتاتے کسے اپنی مجبوریاں
رہ گئے جانبِ آسماں دیکھ کر

ترجمہ: ما خپله مجبوری چاته بیان کړې وای، بس آسمان ته می وکتل.

هغه سړی دوهم واده وکی او دډیری ښائستې ښځی سره یې وکی، شپږ میاشتی نه وې تیری سوی چی پر سړی باندی دفالج مرض ولویدی، لس کاله ژوندی وو، پر بستر باندی یې غول او بولی کولې او دوهمه ښځه هم ځنی ولاړه چی دداسی سړی سره به زما ګزاره څنګه کیږی. وګوری دغه نتیجه وی، دچا ازار مه اخلی.

رسول اللهﷺ فرمائی دبخاری شریف حدیث دی

﴿اِتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ فَاِنَّهٗ لَیْسَ بَیْنَهَا وَبَیْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ﴾ (بخاری۳۳۱ جلد۱)

دمظلوم د آه (ازاره) څخه وبیریږی (ځکه) چی د آه او الله تر مینځ هیڅ پرده نسته.

دغه خبره یو دخدای دوست داسی بیانوی

## بترس از آہ مظلوماں کہ ھنگامِ دُعا کردن
## اجابت از درحق بھر استقبال می آید

دمظلومان د آه(ازار) څخه وبیریږی، کله چی هغه وخدای ته فریاد وکړی نو قبولیت دهغو ددعاوو استقبال کوی.

رسول اللّٰهﷺ فرمائی﴿خَيْرُكُمْ خَيْرُكُمْ لِاَهْلِهٖ﴾(جامع صغیرصفحہ۱۰جلد۲) تر ټولو ښه اخلاق دهغه چا دی څوك چی پر خپلی ښځی باندی مهربانی کوی، دهغې غلطی وربخښی. حضرت تهانوی رحمة اللّٰه علیه فرمائی چی یو مزدور سړی یو چرګ رانیوی، غوړی او نور شیان یې هم ورسره رانیول، دډیر زحمت او خواری په پیسو یې چرګ رانیولی وو لاکن (په پخولوکی یې) دښځی څخه مالګه ډیره سوه او دونه ځنی ډیره سوه چی هغه خوړلای نسوای، اُوبه یې وچیښلې ولاړ سو، مګر هیڅ یې نه ورته وویل، ښه سړی وو، دخدای دوست وو، دغه فکر یې وکی که زما دلور څخه دغه مالګه ډیره سوی وای نو ما هیڅکله دغه غوښتل چی زما زوم دا ووهی، نو دا زما ښځه خو هم دیو چا لور ده.

موږ دخپل لوښو دپاره تعویذان اخلو چی مُلا صاحب یو داسی تعویذ راکه چی زما زوم زما دلور سره محبت وکی، که دهغې څخه غلطی وسی نو وې بخښی، ښکنځل ورته ونه کی، وې نه وهی، میړه سم ژوند ورسره وکی، دهغې سره ښه خندا او خبری وکی او پر آرامه یې وساتی، ووایاست وروڼو آیا موږ داسی تعویذان دخپلو لوڼو دپاره اخلو که یا او زموږ او ستاسی چی کومی ښځی دی دا خو هم دیو چا لوڼی دی که یا او که دوی داغسی دآسمانه را ایله سوی دی. دلته هم دغه فکر وکی چی دمور وپلار زړه به یې څونه غمګینه سی چی دا ورسی او ورته ووایی چی ستاسی زوم زما سره سم ژوند نه کوی، تکلیف راکوی.

لهٰذا هغه مزدور سړی خپله ښځه وبخښل چی یااللّٰه دا ستا بنده ده، دیو څو

شپو دپاره ماته راکړل سوې ده، یو څو شپې وروسته به نه زه پاته یم نه به دا پاته یی، ټوله به په قبروکی پراته یو، یاالله زه ستا درضا دپاره چی دا ستا بنده ده ددې غلطی وربخښم، حضرت تهانوی رحمة الله علیه په خپل بیان کی فرمائی چی کله هغه مزدور سړی وفات سو نو دخدای یو دوست په خوب ولیدی او پوښتنه یې ځنی وکړه چی اې وروره ستا سره څه معامله پیښه سوه، مزدور سړی ورته وویل چی زما ګناوی خو ډیری وې لاکن اللهﷻ دغه راته وفرمایل چی تا یوه ورځ زما بنده(یعنی خپله ښځه دی دمالګی دډیروالی په خاطر) بخښلې وه دهغه په بدله کی نن زه تا بخښم.

حضرت صدیق اکبرؓ دخپل خور دزوی حضرت مسطحؓ څخه پر یوه غلطی باندی خوابدی سو او قسم یې واخیستی چی زه به (بیا) ودته خیر وخیرات ورنه کړم او ټول ژوند به دده سره خبری ونه کړم، ځکه چی حضرت مسطحؓ دبدر غزا کړې وه نو اللهﷻ دده سفارش نازل کړی او اللهﷻ چی یوواری څوك خپل محبوب جوړکړی بیا هغه هیڅکله نه مردوده وی. موږ خو دوست جوړ کړو بیائې مردود کړو ځکه چی موږ په مستقبل کی دچا دوفاداری علم نه لرو او اللهﷻ هغه څوك خپل محبوب ګرځوی کوم چی په علمِ الٰهی کی همیشه مقبول او وفاداره وی ځکه چی اللهﷻ دماضی حال او مُستقبل ټولو علم لری. لهٰذا اللهﷻ دحضرت مسطحؓ سفارش نازل کړی﴿**اَلاَ تُحِبُّوْنَ اَنْ یَّغْفِرَاللّٰهُ لَکُمْ**﴾(سیپاره۱۸سورت نور) اې ابُوبکر! آیا ستا دغه نه دی خوښ چی ته زما دغه بنده(حضرت مسطحؓ) وبخښې کوم چی بَدری صحابی دی، دبَدر په غزا کی جنګیدلی دی او کوم چی ما خپل محبوب وګرځوی، بې شکه دده څخه غلطی وسول لاکن زه یې بخښم، آیا ستا دغه نه دی خوښ چی ته یې هم وبخښې او دقیامت په ورځ الله تا وبخښی. حضرت صدیق اکبرؓ وفرمایل ﴿**وَاللّٰهِ اِنِّیْ اُحِبُّ اَنْ یَّغْفِرَ اللّٰهُ لِیْ**﴾ دخدای په ذات قسم دی چی زه دغه خوښوم چی دقیامت په ورځ الله ما وبخښی، زه مسطحؓ بخښم او تر اول هم زیات پر ده احسان کوم.

زموږ پیر حضرت مولانا ابرارُالحق صاحب مدظله یوځای کښینستی او اودس تازه کول یې شروع کړل بیا (دستی) دهغه ځای څخه ولاړسو دوهم ځای کښینستی، بیا دهغه ځای څخه هم ولاړسو دریم ځای کښینستی، یو چا پوښتنه ځنی وکړه چی حضرت دا څنګه معامله ده، حضرت صاحب جواب ورکړی چی هلته میږیان وه، د اوداسه په اُوبو سره به میږیان تاش په تاش سوی وای، دمیږیانو خاندان به اخوا دیخوا ته سوی وای، په دغه دوی ته تکلیف رسیدی. دغه یې دخدای دوستان کوم چی میږیانو ته هم تکلیف نه ورکوی.

دوستانو! په دې خاطر عرض درته کوم چی دخپلو ښځو څخه بخښنه وغواړی، اُوس لا وخت سته، دقیامت ورځ ډیره سخته ورځ ده، خپلی ښځی ته ووایه که زما څخه یو تکلیف در رسیدلی وی، په درد کی می یو څه درته ویلی وی نو هغه راوبخښنه، او پاته سوه دغه خبره چی ښځی موږ ولی په عذابه وی نو پوه سی که ښځی نن دلته (په پرده کی دبیان داوریدلو دپاره) جمع وای نو دهغو ومخته به ما ستاسی طرف نیولی وای، ښځی به می پوه کړی وای چی دخپلو مړو عزت وکی، هغه مه خوابدی کوی کنې ستاسی هیڅ عبادت به نسی قبول لاکن اُوس خو تاسی زما په لاس راغلی یاست، په دې خاطر دعوه ستاسی پر خلاف جوړه ده چی دمړو دخوا چی دښځو کوم حق وهل کیږی هغه راوګرځول سی. او دخپلو ښځو سره دښه وضعیت کولو او دهغو پر تکلیفو باندی دصبر کولو دوې قصې درته وړاندی کوم چی دغه نصیحت پکښی کی دی که تا ښځه په عذابه وی یا دهغې په طبیعت کی خوشکه ډیره وی یا ترخې ترخې خبری درته کوی نو هغه برداشت که ته به دالله ﷻ محبوب وګرځې، دمثال په توګه که ستا دلور ژبه ترخه وی لاکن زوم دی ښه په نصیب سوی وی او ستا لور راسی درته ووایی چی زه ودته ترخې خبری وکم، په عذاب یې کم، خوشکه هم په ماکی ډیره ده لاکن پلاره ستا زوم ملائکه دی ملائکه، زما څخه هیڅ

وخت انتقام نه اخلی بلکې په خندا راځخه ولاړسی، هیڅ نه راته وایی، دوستانو! موږ هم زړه لرو، پر زړه باندی لاس کښېږدی راته ووایاست چی دپلار زړه به یې څه غواړی، آیا دهغه زړه به دغه ونه غواړی چی یو تعمیر می درلودای نو دزوم پر نامه کړی به می وای، موټرکه می درلودای نو دته به می ورکړی وای. داللّٰهﷻ کومی بندګانی چی بدطبیعته دی، دردمنی دی، دهغو تیزی او ترخې خبری چی کوم خلګ پر ځان وړی نو اللّٰهﷻ هم دداسی بندګانو څخه دونه خوشحاله سی چی هغوته دخپلی دوستی اعلٰی او لوړ مقام ورپه نصیب کړی، اللّٰهﷻ داسی خلګ خپل ډیر لوی ولیان جوړ کړی.

اُوس نو دوې قصې درته وړاندی کوم بیا نو بیان ختموم، زما اراده خو دمختصره بیان وه لاکن ستاسی په برکت ډیر مضمونونه (پر زړه) راغلل او دا فکر هم وکی چی دکراچی (پاکستان) څخه تردې ځایه څونه فاصله ده، دلته هرواری راتلل آسانه کار نه دی، نه تاسی زما ژبه هرواری لیدای سی او نه زه ستاسی غوږونه، ژبه دکراچی ده او غوږونه دجنوبی افریقه دی، لهٰذا که بیان لږ اوږد سو نو دحیرانی څه خبره ده. زموږ پیر حضرت مولانا شاه عبدالغنی رحمة اللّٰه علیه دبزرګانو دوې قصې راته کړی وې هغه واوری.

یو بزرګ حضرت مرزا مظهرجان جانان رحمة اللّٰه علیه دونه نازك طبیعته وو چی دوخت پاچا ودته راغلی، اُوبه یې ورسره وچیښلې او پر منګی باندی یې داُوبو پیاله کږه کښیښول، دبزرګ پر سر درد سو لاکن صبر یې وکی، یوڅه وروسته پاچا عرض ورته وکی چی حضرت صاحب زه غواړم چی ستا دخدمت دپاره یو مزدور درکړم، دهغه تنخوا به موږ دشاهی خزانې څخه ورکوو، حضرت صاحب ورته وفرمایل چی تر اُوسه خو ما صبر کړی وو لاکن نور یې نسم برداشت کولای، چی ستا پر منګی باندی پیاله ایښول نه دی زده، پیاله دی کږه کښیښول زما پر سر دی را درد کی نو ستا

دمزدور به څه حال وی، بس معاف می که مزدور مه راکوه، دونه نازك طبیعته وو، که دلمانځه دپاره دډهلی جامع مسجد ته تلی او په لارکی یې چارپائی کړه پرته ولیدل نو پر سر به ئې درد سو، پرځان داچولو په څادر کی یې که یو تار غلط ګنډل سوی وو نو پر سر به ئې درد سو.

پر حضرت مظهرجان جانان رحمة اللّٰه علیه باندی الهام وسو(یعنی په زړه کی خدای ورواچول) چی اې مظهرجان جانان ته ډیر نازك طبیعته یې، زما یو بنده ده دژبې ډیره تیزه او ترخه ده که تا دهغې سره واده وکی او سم ژوند دی ورسره تیر کړی نو زه به ستا نوم په ټوله جهان کی در روښانه کم، تاته به دونه عزت درکړم چی په ټوله جهان کی به ستا نوم وی، ستا څخه به ددین ډیر زبردسته کار واخلم. حضرت صاحب دستی واده ورسره وکی، اُوس نو سهار او ماښام دهغې تیزی تیزی او ترخې ترخې خبری اوری لاکن څه انعام ورکړل سو چی دده خلیفه شاه غلام علیؒ (غوندی بزرګ) سو او دهغه خلیفه مولانا خالدکُردیؒ (غوندی بزرګ) سو دشام په ملك کی، دده (دمُریدی) په سلسله کی مُفسرِ عظیم علامه سیّد محمُود بغدادی رحمة اللّٰه علیه داخل سو او هم دده په سلسله کی علامه شامی ابنِ عابدین رحمة اللّٰه علیه بیعت سو. اللّٰهﷻ داسی روښانه کړی.

یو شاګرد یې وه حضرت مظهرجان جانان صاحب ته وویل چی حضرت نن ما ستا دپاره (ستا دښځی څخه) ډوډی وغوښتل نو هغې تاته ډیری بدی خبری وکړې، حضرت صاحب تا ولی دداسی ښځی سره واده وکی، حضرت صاحب ورته وفرمایل چی بې عقله ددې پر ترخو ترخو خبرو باندی دصبر کولو په سبب اللّٰهﷻ ماته خپل دونه تعلق او خپل دونه قُرب(نژدیوالی) راپه نصیب کړی دی چی نن په ټوله جهان کی زما نوم روښانه دی، ماته اللّٰهﷻ داسی عزت راکړی دی چی ما فکر هم نسوای کولای. دمخلوق پر تکلیفو باندی دصبر کولو انعام هم اللّٰهﷻ ډیر لوی ورکوی.

دوهمه قصه واوری یو بزرګ وه خدای ته دعا وکړه چی اې خدایه ماته یو کرامت راکړې، دغه ستا بنده(یعنی زما بنځه) ډیری ترخې ترخې خبری راته کوی، زه یې پرځان نسم وړای، (یاالله) ته ماته یو (داسی) کرامت راکړې چی زه خپل دبزرګی سام پردې واچوم او ما دخدای دوست وبولی او زما دښرا دبیری څخه ما په عذاب نه کړی، (پر بزرګ باندی) دآسمانه ږغ وسو چی پر خپل چارپایی باندی کښینه، زه به چارپایی ته دپه هَوا کیدو حکم ورکړم، پر چارپایی باندی دهغې پر سر تیرسه، بیا هغې ته ووایه چی ځنګه کرامت می دربنکاره کړی، اُوس خو ما بزرګ وبوله او مه می په عذابه وه.

بزرګ پر چارپایی کښینستی هغه دستی په هَوا سول، د سرای پر سر دخپلی ښځی ومخته څو واره را وڅرخیدی، بیرته چی راغلی دښځی څخه ئې پوښتنه وکړه چی تابه نن یو بزرګ نه یی لیدلی، هغې ورته وویل چی نن می یو داسی بزرګ ولیدی چی په آسمان کی په هَوا وو، زما دسرای پر سر څو واره راوڅرخیدی، دغه ته وایی بزرګ، یو ته یې چی ناحقه دی دځانه بزرګ جوړ کړی دی، هر وخت پر مځکه ګرځې، یو وخت ته هم په هَوا سوی یې، هغه بزرګ ورته وویل قسم په دخدای چی هغه زه وم خدای نن ماته کرامت راکړی، نو ښځه یې څه ورته وایی چی توبه توبه په داغه زه وایم چی دا کوږ کوږ ولی کیږی. تاسی وکتل دستی یې عیب پکښی راوایستی، اعتراض یې پر وکی، زبردسته اعتراض یې پر وکړی چی ښه دا ته وې هغه دی چی کوږ کوږ کیدلې، وګوری کرامت یې هم ورګډوډ کړی.

یوه بله قصه راپه یاد سول هغه هم واوری. شاه اُبوالحسن خرقانی رحمة الله علیه یو بزرګ وو، دکرامت خاوند وو، دزر میله لیری څخه یو سړی دده دمُریدی دپاره راغلی، خرقانی رحمة الله علیه ځنګله ته دبوټو دپاره تللی وو. هغه سړی دپردې تر شا دخرقانی رحمة الله علیه دښځی څخه پوښتنه وکړه چی شیخ صاحب چیری دی، دننه

ښځه يې ښځې ورته وويل چې هغه شيخ چيرې دی ميخ(ټنګ) دی، هغه بيخي بزرګ نه دی ناحقه تاسی (دده په) قصه اخته ياست، شپه او ورځ خو زه دهغه سره او سيږم، زه يې ښه پيژنم، تاسی يې څه پيژنی، اُوس نو هغه سړی بيچاره په ژړا سو چې ياالله زه دزر ميله ليری څخه راغلی يم دده دبزرګی په خاطر او دغه ښځه يې څه وايي، سړی ته دهغه کلی خلګو وويل چې ښځه يې ډيره بد اخلاقه ده، دا دشيخ صاحب کمال دی چې دداسی ښځې برداشت يې راوړی دی، ولاړسه په ځنګله کې په شيخ صاحب پسی وګرځه، ځنګله ته چې دئ ورغلی نو وې کتل چې شاه ابُوالحسن خرقانی رحمة اللّٰه عليه پر شير باندی ناست راروان دی او بوټی يې هم دشير پر شا ايښی دی او دمار شلاخه يې هم په لاس کې ده، خرقانی رحمة اللّٰه عليه چې سړی وليدی نو ورته وې فرمايل چې شايد ته زما دکوره راروان يې چې داسی غمګين يې، زما دښځې څخه به دی يو څه اوريدلی يی، دهغه فکر مه کوه، زه چې دهغې سره ګزاره کوم او دهغې بداخلاقی او ترخې خبری پر ځان وړم دداغه په برکت سره اللّٰهﷻ ماته دغه کرامت راکړی دی چې دغه شير زما په قبضه کې دی او زه دده څخه دمزدوری کار اخلم، هره ورځ پر ده باندی بوټی راوړم او دغه دمار شلاخه خدای تعالی ماته راکړې ده کله چې دغه شير ودريږی نو دمار په شلاخه يې وهم.

مولانا جلالُ الدين رومی رحمة اللّٰه عليه په مثنوی شريف کې دغه قصه بيان کړې ده او پر دغه ځای باندی يې يو شعر ليکلی دی کوم چې زموږ پير مولانا شاه عبدُالغنی صاحب رحمة اللّٰه عليه به ويلی او په ډير خوند سره به يې ويلی

*گرنہ صبر می کشیدے بار زن*

که زما صبر ددې ښځې دترخو خبرو برداشت نه وای راوړی، ددې ښځې دبداخلاقی بار که زما صبر نه وای پورته کړی

*کے کشیدے شیر نر بے گار من*

نو پر دغه شیر باندی ما سواری کولای سوای، شیر زما مزدوری کولای سوای، اللّٰهﷻ دغه دهغه صبر په برکت راکړی دی.

دوستانو! زه داغه عرض درته کوم چی دخپلو ښځو په معامله کی دښه اخلاقو څخه کار واخلی، دهغو ترخې خبری برداشت کړی، که مو برداشتولای نسوای نو دیو څو دقیقو دپاره دکوره څخه دباندی ولاړسی. سعدی شیرازی رحمة اللّٰه علیه فرمائی که دی ښځه ترخې خبری کوی نو په خوله کی یې میټایی ورواچوه چی ښکنځل یې هم تر خولې خواږه خواږه راووزی. عموماً خلګ ښځی په سوټی سموی که څه هم ښځی په سوټی نه سمیږی.

وګوری رسول اللّٰه ﷺ فرمائی دبُخاری شریف حدیث دی ﴿اَلْمَرْأَةُ كَالضِّلْعِ﴾ ښځه په مثل دکږې پوښتۍ ده، ځکه چی دکږې پوښتۍ څخه پیدا سوې ده لهٰذا په دې کی به یو څه نه یو څه کوږوالی وی ﴿اِنْ اَقَمْتَهَا كَسَرْتَهَا﴾ که دی (دښځی) دسیده کولو کوښښ وکی نو ماته به یې کړې، تر طلاقه به نوبت ورسیږی ﴿وَاِنِ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا وَفِيْهَا عِوَجٌ﴾ اوکه ته دښځی څخه ګټه اخیستل غواړې نو ګټه ځنی واخله او په دې کی به کوږوالی پاته وی.

(دخپلو) کږو پوښتۍ څخه فائده اخلې که یا او که یو وخت ډاکټر ته ورغلی یې چی زما کږې پوښتۍ راسیده که همدغه رنګه دښځی دکوږوالی سربیره دهغې څخه فائده اخیستلای سې او دهغې څخه آرام به هم درته حاصل سی، اولاد به هم درته حاصل سی، کیدای سی چی دهغې څخه یو ولی اللّٰه پیداسی کوم چی دقیامت په ورځ ستا دبخښلو ذریعه وګرځی ﴿وَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ (سیپاره۲سورتِ بقره) اللّٰهﷻ فرمائی چی بعضی شیان ته نه خوښوې او په هغه کی ستا دپاره خیر وی. ته خو دغه فکر کوې چی (زما دښځی) پزه پیته ده، رنګ یې تور دی او ښائسته باید زما په نصیب سوې وای لاکن کیدای سی چی ددې څخه اللّٰهﷻ یو دخدای دوست عالم

حافظ پیدا کړی کوم چی دقیامت په ورځ ستا په کار درسی. په دې خاطر مخ ته یې مه ګوره. بعضی وخت مځکه توره او خرابه وی مګر هغه ډیره ښه غله کوی (همدغه سی) دتورو ښځو ځخه دخدای دوستان پیدا سول او دښائستو ښځو ځخه بعضی وخت شیطانان پیدا سول.

په دې خاطر خپلی ښځی حقیری مه بولی، رنګ او روغن ته یې مه ګوری، هر څنګه چی دی دهغو سره سم ژوند تیر کړی، که دښځو ځخه ګټه اخیستل غواړی نو دهغو فطرتی کوږوالی به برداشته وی. دحدیث پاك الفاظ دی﴿وَفِيْهَا عِوَجٌ﴾ دبخاری شریف ددې حدیث په شرح کی علامه قسطلانی فرمائی چی (ارشادالساری صفحہ۸۷جلد۸) ﴿فِيْهِ تَعْلِيْمٌ لِلْاِحْسَانِ اِلَى النِّسَاءِ﴾په دغه حدیث شریف کی تعلیم راکړل سوی دی پر ښځو باندی داحسان کولو ﴿وَالرِّفْقِ بِهِنَّ﴾ او دهغو سره دنرم وضعیت کولو﴿وَالصَّبْرِ عَلٰى عِوَجِ اَخْلَاقِهِنَّ﴾ او دهغو پر اخلاقی کوږوالی باندی دصبر کولو﴿لِاِحْتِمَالِ ضُعْفِ عُقُوْلِهِنَّ﴾ ځکه چی دهغو عقل کمزوره یې. دچا چی عقل کم وی هغه ژر جنګ کوی، په خلګو او کوچنیانو کی هم وګوری څوك چی کم عقله وی هغه ډیر جنګیږی، ښځی هم کم عقله دی په دې خاطر ددوی تیزی او ترخې خبری برداشت کړی. وګوری څونه ښه تعلیم په دغه حدیث پاك کی راکړل سوی دی چی دښځو دسیده کولو کوښښ مه کوی، دهغو کوږوالی برداشت کړی.

او اُوس به دغه آخری حدیث شریف درته وړاندی کم او مضمون به ختم کړم، کوم چی شاید نن خلګ اول واری واوری، په تفسیر روحُ المَعَانی کی دغه حدیث موجود دی، که تفسیر روحُ المَعَانی دلته وی نو هر وخت چی عُلماء وغواړی (دغه حدیث پاك) ورښکاره کولای سم، زما هیڅ خبره به انشاءاللّٰه بیله دلیل نه وی. رسول اللّٰهﷺ فرمائی (روحُ المَعَانی صفحہ۱۴جلد۵) ﴿يَغْلِبْنَ كَرِيْمًا﴾ دښځو طبیعت

داسی دی کوم چی نرم طبیعته مرونه وی، ښنه خلګ وی، کوم چی انتقام نه اخلی، سوتړی نه پر اوروی بلکې دسوتړی پرځای هګۍ په خوری نو پرداسی نرم طبیعته مرو باندی (ښځی) غالبی سی، پوهیږی چی بدله نه راځخه اخلی، ښکنځل نه راته کوی په دې خاطر مرو ته تیزی خبری کوی چی ما تاته ویلی وه چی داسی ټوکر راته راوړه، تا څنګه راوړی، ما تاته دچپلکو ویلی وه تا څه شی راته راوړې، ما تاته دښه ټوکرانو د راوړلو ویلی وه تا ګودړ راته راوړل، ما تاته ویلی وه چی دچایو ښې ښې پیالې راوړه تا څه شی راته راوړې، پر چپلکو، ټوکرانو او پیالو باندی دمیړه سره جنګ کوی او هغه بیچاره ورته خاندی هیڅ نه ورته وایی﴿**یَغْلِبْنَ کَرِیْمًا**﴾دا درسول اللّٰهﷺ دنبوت الفاظ دی چی پر نیك، لایق او نرم طبیعته خاوند باندی ښځی غالبی سی﴿**وَیَغْلِبُهُنَّ لَئِیْمٌ**﴾او بد اخلاقه خلګ پر ښځو باندی په وهلو او په سوټو غالبه سی، ښځه بیچاره خوکمزوره یی، دهغې پلار او ورور خو هلته وی نه، یو سوك او دوې لغتی یی ووهل، هغې (دزړه ددرده څخه) یو آه کش کړل او چپ سول او دبیری څخه یې بیا هیڅکله پر خاوند باندی ناز هم ونه کړی، کنې (پرخاوند باندی) ناز کول دښځو شرعی حق دی.

رسول اللّٰهﷺ فرمائی اې عائشه! کله چی ته راڅخه خوابدې سې نو زه در پوه سم، حضرت عائشهؓ عرض ورته وکی چی اې نبیﷺ زما مور او پلار دی پر تا قُربان سی تاته څنګه درمعلوم سی چی نن سبا زه ستا څخه خوابدې یم، نبیؑ ورته وفرمایل کله چی ته زما څخه خوابدې یې نو ته وایې﴿**وَرَبِّ اِبْرَاهِیْمَ**﴾ دابراهیم درب قسم دی، زما نوم نه اخلې او کله چی زما څخه خوشحاله یې نو وایې﴿**وَرَبِّ مُحَمَّدٍ**﴾ دمحمدﷺ درب قسم دی، نو حضرت عائشهؓ وخندل او ورته وې وویل چی اې دالله رسوله تا بالکل صحیح وفرمایل (بخاری صفحه۷۸۷جلد۲). ددې (حدیث) څخه معلوم سول چی ښځی (پر میړه باندی) لږ دناز ښکاره کولو حق هم لری، که (دی ښځه) مخ درڅخه وه پړسوی نو په سوك یې مخ مه ورسموه بلکې مخ یې په خوله کی دمیټایی په

ورکولو سره ورسم که، که درڅخه خوابدې ده نو خوشحاله یې که، پوښتنه ځنی وکه چی څه تکلیف درپیښ سو، ستا په حق کی زما څخه کومه غلطی وسول، میټایی په پټه وروړه، په پټه یې په خوله کی ورواچوه. خپلو ښځو ته په خوله کی ګوله ورکول سنت ده که یا، یو وخت خو پر دغه(سنت) هم عمل وکی لاکن دګولې څخه دغه مطلب نه دی چی دمرچکو چکنی په خوله کی ورواچوه چی په مرچکو یې دکولمو تاو شروع سی.

نو ددې وروسته نبیؑ فرمائی ﴿فَاُحِبُّ اَنْ اَکُوْنَ کَرِیْمًا مَغْلُوْبًا﴾دا ثوك فرمائی سیدُالانبیاءﷺ ارشاد فرمائی چی زه دا خوښوم چی کریم(نرم طبیعته) اوسم که څه هم (وخپلو ښځوته) مغلوب اوسم، که څه هم زما ښځی زما سره په لوړ آواز خبری وکی لاکن زه خپل اخلاقی لوړوالی کم نه کړم، خپل اخلاقی لوړوالی قائم وساتم، پر هغو باندی مهربان اوسم، دهغو خبری پر ځان یوسم، ځکه چی داللهﷻ بندګانی دی په دې خاطر وې بخښم، ﴿وَلَا اُحِبُّ اَنْ اَکُوْنَ لَئِیْمًا غَالِبًا﴾ او زه دغه نه خوښوم چی په بد اخلاقی سره پر ښځو باندی غالبه سم او زما اخلاقی لوړوالی ته تاوان ورسیږی.

یوواری بی بیګانو (دنبیؑ سره) لږ په زوره خبری کولې، دډوډی او نفقې په باره کی یې خبری کولې، په دا حال کی حضرت عمرؓ راغلی ټولی (بی بیګانی) چپ سوې، ځکه چی ږغونه یې واوریدل چی نن لږ په زوره خبری کیږی نو حضرت عمرؓ ورته وفرمایل چی اې زما مَندو! تاسی دنبی سره په لوړ آواز خبری کوی او دعمر څخه وبیریداست، نو زموږ مَندو څه ورته وفرمایل، زموږ مَندو ورته وفرمایل چی اې عمره ستا زړه سخت دی او زموږ ژوند درَحمَةُ لِّلعٰلمین سره دی، زموږ دمهربان نبی سره ژوند دی، ستا په طبیعت کی سختی ده، زموږ نبی سخت نه دی، هغه رحمةُ لِّلعٰلمین دی، زموږ ناز وړونکی دی په دغه خاطر خو موږ پر ده باندی ناز کوو(بخاری صفحه۵۲۰ جلد۱). سُبحان الله ښنګه خبره یې وفرمایل.

بیچاره ښځې به څه ناز و کې پرداسې مړو باندې چې دا یو څه ورته ووایي او هغه یو ورته کش کې او عجبه خبره ده چې (میړه) ټوله ورځ ووهل او دشپې یې په غیږ کې اخیستې مچه ځنې اخلي، تاسې ووایاست چې دا انسان دی که حیوان چې سهار خو یې په سوټې وهي او دشپې دمحبت ډیر لوړ مقام ښکاره کوي، د ورځې چغال او دشپې مجنون ځنې جوړ سي.

زما دوستانو! که یو داسې خبره وي مثلاً (ښځه دې) لمونځ نه کوي نو دعُلماوو څخه پوښتنه وکړه چې څه وکم، دلمانځه دفضائلو کتاب یې وسرته کښېږده یا کتاب هره ورځ ته ورته وایه لاکن دوهلو طریقه ښه نه ده. څونه چې کیږي هغونه صبر وکه لاکن که دسختې کولو ضرورت پیښ سي نو زه مو نه راګرځوم، دسختې یو څه اجازه خو سته لاکن ددین په باره کې مثلاً سینما ته دتلو په باره کې درته ووایي هغه وخت ته سختې وکه یا که ټي وي او وي سي آر د راوړلو فرمایش درته وکې نو ته ددین په باره نرمي مه کوه، ورته ووایه چې هیڅکله به (زموږ کورته) وي سي آر نه راځي، هیڅکله به دګناه کار زموږ په کور کې نه کیږي.

که دې ښځه دکوچنیانو دپاره پلاسټیکې پیشې راوړي نو بې شکه عکس په کورکې مه پریږده لاکن لږ په صحیح طریقه کار وکه او هغه صحیح طریقه دغه ده، ما وخپلو دوستانو ته هم دغه صلاح ورکړې ده که ستا ښځې د دوو روپو پلاسټیکې پیشې راوړې ده نو ته دپنځو روپو طیاره ورته راوړه، تر پیشې ښه او ګران شی چې شرعي جائز وي اول دکوچنیانو دپاره راوړه مثلاً طیاره، ریل ګاډې یا ګیند ورته راوړه کوچنیانو ته یې ورکه اوکه دې هیڅ شی ورنه کړي او دپلاسټیکې پیشې پر غاړه دې چاقو راتیر کړي نو کوچنیان به هم ژاړي او ښځه به دې هم درسره جنګیږي چې تر پرونه پورې خو تا ږیره خریل، پتلون دې اغوستې، په تبلیغ کې دې څلویښت شپې څه ولګولې نو دځانه دې مُلا جوړ کړی، ډیر ظالم یې دکوچنیانو زړه دې ازار کړي، هغه

ژاړی، دهغو به وخت په تیرې دی هغه هم تاته خوند در نه کړی.

په دې خاطر په یو ښه او جائز شی باندی اول دکوچنیانو زړه ورخوشحاله که، ددې دپاره پیسې مصرف که، کنجوسی مه کوه، بیا په پټه پلاستیکی پیشی ایسته که، ماته ئې که او وې غورځوه، ځکه چی دژوندی شیانو عکسونه په ایښولو سره کور ته درحمت ملائکی نه راځی، دحیوان عکس وی که دانسان عکس وی او که دیو ولی عکس وی دهیچا عکس ایښول جائز نه دی سخته ګناه ده.

نو دوستانو! دغه یو څو خبری مادرته وکړې، نن تاسی وخپلو ښځو ته یوه دخوشحالی دغه خبره خو وکی چی په جنت کی به ستاسی حُسن تر حورو زیات کړل سی، چی دښځو دغه غم چی زموږ ښایست خراب سوی دی، په خوشحالی بدل سی او عجبه خبره خو دا ده چی دسپین ږیری وریښتان خو سپین یی لاکن دنفس وریښتان یې دننه تور وی، سپین ږیری هم دغه نه غواړی چی دسپین سری سره واده وکم، دغه خواهش یې وی چی دکم عمره ښځی سره یو بل واده وکم، خپله داویا کالو دی لاکن خواهش یې دغه دی چی واده دڅلویښت کلنی سره وکم، هیڅکله به دغه ونه وایی چی د اویا کلنی سپین سری سره زما واده راوکی.

لهٰذا ورونړو ښځه مو سپین سرې وی که هر څنګه وی، هر چاچی خپلی ښځی په ژړا کړی وی، هغه یې ازار کړی وی، هغه یې په اُوښکو ژړولی وی، هغه دی نن ولاړسی دهغو څخه دی بخښنه وغواړی، هغې ته دی ووایی چی انشاء اللّٰه زه اُوس تا خالی خپله ښځه نه بولم بلکې داللّٰه جَلَّ جَلَالُهٗ بنده دی هم بولم، په دې خاطر زه نور ستا سره ډیر ښه وضعیت کوم، لکه څنګه چی زه دخپلی لور دپاره خوښوم چی زما زوم دهغې سره ښه اخلاق وکی، دهغې غلطی وروبخښی، دنن څخه زه هم ستا غلطی تر مخه دربخښم او تابه هیڅکله ونه ژړوم، هیڅکله به دی خوابدې نه کړم، پر دغه طریقه باندی هغه خوشحاله کړی او صرف په خوله ویل نه بلکې یو څه پیسې هم هغې ته تحفه

ورکړی، صرف په خوله معافی غوښتل چی بخښنه بخښنه غواړم او یوه روپی هم نه را ایستل نو داهم دکنجوسی علامه ده، لکه څنګه چی مولانا رومی رحمة اللّٰه علیه لیکلی دی چی دیو سړی سپی دلوږی څخه مړکیدی او خاوند یې ورته ژړل چی زما سپی مری، لس کاله می پاللی دی، بل سړی ورته وویل ستا پر سر چی دا ټوکرئ ده په دغه کی څه شی دی، هغه ورته وویل چی ډوډی ده، سړی ورته وویل نو دغه ډوډی سپی ته ولی نه ورکوې چی ژاړې چی سپی می دلوږی مری، دسپی خاوند ورته وویل چی ګوره صاحبه دغه اُوښکی خو په مفته دی او پر ډوډی باندی ما مال ورکړی دی یعنی پر ډوډی باندی می پیسې تللی دی او اُوښکی په مفته دی، نو داسی مه کوی، خپلو ښځو ته یو څه ورکی.

مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه په خپل کتاب کمالاتِ اشرفیه کی دښځو یو حق دغه هم لیکلی دی چی هره میاشت هغې ته یو څه دجیب خرڅ هم ورکوه او بیا دهغه حساب مه ځنی اخله چی تا چیری مصرف کړې، اللّٰه جَلَّ جَلَالُهٗ چی چاته څونه ورکړی دی دهغه په حساب دی دخپلی ښځی میاشتانه مقرره کړی، که دی ګټه لس زره روپی ده نو یوه روپی مه ورته نیسه، پنځوس روپی ورکه، سل روپی ورکه بلکې ډیری ورکړه او چی وردی کړې بیا یې هیری که او هغې ته ووایه چی ته اختیار لرې چی هر چیری یې مصرفه وې، ددې پیسو حساب زه نه درڅخه اخلم.

دغه میاشتانه دجیب خرڅ دهغې حق دی ځکه چی هغه مجبوره ده پیسې نه سی ګټلای، دهغې زړه غواړی چی ورور می راغلی دی، غریب دی هغه ته یو تحفه ورکم، که دهغې سره پیسې نه وی نو دکومی خوا تحفه ورکی، په دغه خاطر (په دې کی) دهغې داحساساتو او خواهشاتو خیال ساتل دی، ټوله ژوند ستا سره پابنده ده، دژوند رفیقه دی ده، ستا ددروازې څخه دباندی نسی وتلای، ټوله ژوند ستا سره ملګری کوی، په دې خاطر پر هر ډول باندی دهغې داستراحت او آرام خیال ساتل ضروری دی.

یوه بله خبره هم درته کوم چی یو سړی وو هغه به وه نورو ښځو ته کتله او دحُسن دکموالی په خاطر یې خپله ښځه حقیره بلل، دغه سړی دهیضې په مرض اخته سو، په خپلو سترګو لیدلې قصه درته کوم، اسهال پر اسهال او استفراقونه پر استفراقونه یې شروع سول، ښځی یې غول او بولی ورپاکولې، ښځی یې دونه خدمت وکی چی کله دی جوړ سو نو ورته وې ژړل چی اې زما ښځی تا زما مُرداری راپریولل، کومو ښځو ته چی ما کتل نن یوه هم په کار نه راغله، په کار خو ته راغلی.

اې زما وروره کله چی پر چارپائی باندی سپین ږیری پروت یی او یوه ناجوړی پر راسی نو خپله سپین سرې یې په کار ورځی، په دې خاطر دا حقیره مه بولی. که نن تاسی ټولو دخپلو ښځو سره دښه ژوند کولو اراده وکړل دالله تعالیٰ په خاطر چی زما دالله بنده ده نو زما (جنوبی افریقې ته) راتګ وصول سو انشاء الله تعالیٰ. بس دعا وکی چی الله تعالیٰ دغه خبری راځخه قبولی کړی، که زما یو بیان هم قبول سو نو دکراچی (پاکستان) څخه تر دې ځایه پوری دراتګ ټوله تکلیف وسول سو، تاسی ټوله نن وعده راسره وکړی چی کور ته ولاړسی نو وخپلو خپلو ښځو ته زما کومه خبره چی مو په یاد وی هغه به ورته وکړی.

په اِله آباد کی کوم چی دهندوستان یو ښار دی هلته یو ډیر لوی عالم کوم چی دمولانا شاه وصی الله صاحب خپل هم دی او دیو لو مدرسې مُهتمم دی، هغه پر خپل ځای باندی زما بیان ټاکلی وو، دشپې دهغه ښځی هم (په پرده کی) زما بیان واوریدی نو یې وخپل میړه ته وویل چی ته دونه لوی عالم یې مګر تا ماته تر ننه دغه نه دی ویلی چی زموږ شکلونه به په جنت کی تر حورو ډیر ښائسته سی، لهٰذا دغه مُلا صاحب چی راغلی دی چاچی دونه لو دخوشحالی خبره وکړه، زه دده دچایو ښه میلمستیا کول غواړم یعنی دهګی، کولچو او داسی نورو شیانو. نو دوستانو! نن وخپلو ښځو ته داغه خبره وکړی نو بیا به ستاسی هم دچایو ښه میلمستیا وسی انشاء الله.

بس دعا وکی چی اللّٰه تعالیٰ دعمل توفیق راپه نصیب کړی او چی څه وویل سول اللّٰه تعالیٰ دی هغه قبول کړی او موږ ټولو ته دی داولیاوو ژوند راپه نصیب کړی، اې اللّٰه دنفس او دشیطان دغلامی څخه مو خلاص کړې او سل فیصده خپل دفرمانبرداری ژوند، داطاعت ژوند، دولیانو ژوند راپه نصیب کړې، زموږ ګناوی راوبخښې، موږ که ستا په مخلوق کی پر یو چا ظلم کړی وی، که پر یوه میږی هم ختلی یو دخپل غفلت او نالائقی په سبب، یا که مو خپلی ښځی ازار کړی وی یا که مو دخاندان خلګ یا مور و پلار خوابدی کړی وی نو ددوی بیرته دخوشحاله کولو توفیق راکړې، دهغو څخه معافی دغوښتلو توفیق راپه نصیب کړې، دخپل مخلوق په باره کی زموږ همکاره سې، دقیامت په ورځ دهغو څخه دمعافی دپاره ته زموږ کفالت قبول کړې او څوك چی ژوندی دی دهغو حق د ادا کولو او دهغو څخه دبخښی دغوښتلو توفیق هم راپه نصیب کړې.

موږ ټوله دخپل حق په باره کی هم وبخښې او دخپل مخلوق په حق کی مو هم وبخښې. یااللّٰه موږ ټوله خپل دوستان وګرځوې، څونه خلګ چی دلته ناست دی یااللّٰه یو هم مه محرومه کوې، زه مسافر یم، ته دمسافر دعا قبولوې، موږ ټوله خپل دوستان وګرځوې یو هم مه محرومه کوې، ټوله دخدای دوستان کړې، کوم خلګ چی دلته نسته هغه هم خپل دوستان کړې، اې اللّٰه زموږ دخاندان خلګ، زموږ ښځی، زامن او اولادونه هم صالح او دخدای دوستان کړې، لوڼی مو هم دخدای دوستانی کړې، زموږ دنیا هم راسمه کړې آخرت هم راسم کړې، اې اللّٰه دغه بیان راڅخه قبول کړې.

## دکورنی شخړو څخه دحفاظت طريقه

حضرت تهانوی رحمة اللّٰه عليه فرمائی چی دکورنی جنجالو څخه دحفاظت يو ښه طريقه دغه ده چی څو خاندانه دی په يوه کور کی يوځای نه اوسيږی ځکه چی دځو ښځو په يوه کور کی اوسيدل دفساد سبب دی.

## دميږه او مانديني حقوق

دميږه او مانديني تر مينځ دژوند دترخوالی اصلی سبب عموماً ديو او بل حق نه ادا کول دی. په داغه خاطر جنګونه کيږی او جنجال پيښيږی، په دې خاطر پر دوارو باندی لازمه ده چی يو دبل حق سره وپيژنی او بيا دی هغه ټوله حقوق د ادا کولو بيرته دسره کوښښ شروع کړی، هر چيری چی غلطی کيږی دزړه څخه دی دخپلی غلطی اقرار وکړی او ژر دی هغه غلطی راوګرځوی اوکه (دواړه) داسی وکړی نو بيا (ډيره مشکله ده چی) ددوارو تر مينځ جنجال پيښ سی. دلته مختصره ددوارو يو څو شرعی حقوق ذکر کيږی.

## پر خاوند باندی دمانديني دغه حقوق دی

۱) دمانديني سره خوش اخلاقی کول.

۲) په اعتدال سره دښځی پر تکليفو باندی صبر کول يعنی دښځی څخه که (ستا) دطبيعت خلاف يوه خبره وسی نو پر هغه باندی صبر او برداشت کول او په نرمی سره هغې ته ويل چی بل واری يې خيال وساتی، پر کوچنی کوچنی خبرو باندی دخوشکو څخه پرهيز کول.

۳) په غيرت کی اعتدال ساتل، ددې دغه مطلب دی چی نه دی ناحقه پر مانديني باندی بدګومانی کوی او نه دی يومخ دښځی دخوا څخه بې فکری کوی.

٤) په خرڅ کی اعتدال ساتل، یعنی نه دی تر حد ډیره تنګی پر راولی او نه دی دفضول خرڅ اجازه ورکوی، میانه حاله دی اوسی.

٥) دحیض او نفاس(دښځی دمریضی) احکام زده کول او وښځی ته یې ورښول، دلمونځ کولو او پر دین باندی دعمل کولو په باره کی تاکید ورته کول او دبِدعتو او رواجو څخه یې منع کول.

٦) که (دسړی) څو ښځی وی نو دهغو تر مینځ حقوق برابر ساتل.

٧) دضرورت په اندازه دهغې سره جماع(کورداری) کول.

٨) دضرورت په اندازه هغې ته داوسیدلو دپاره کور ورکول.

٩) کله کله ښځه دخپلو محرمو او خپلوانو دلیدلو دپاره پریښول.

١٠) دهغې سره دجماع(کورداری) خبری وبل چاته نه کول.

١١) دضرورت پر وخت دښځی دوهلو او دیو څه ورته ویلو کوم حد چی شریعت ښوولی دی تر هغه یې زیات نه وهل.

## پر ماندینې باندی دمیړه دغه حقوق دی

١) په هر جائز کار کی دمیړه اطاعت کول، هو دشریعت پر خلاف او دګناه په کار کی دی معذرت غنی وغواړی.

٢) دمیړه تر وس زیاته نان اونفقه نه غنی غوښتل.

٣) بیله دمیړه داجازې هیڅوك كورته نه پریښول.

٤) بیله دمیړه داجازې دهغه دکوره څخه نه وتل.

٥) بیله دمیړه داجازې دهغه دمال څخه هیچا ته نه ورکول.

٦) بیله دمیړه داجازې نه نفل لمونځ کول او نه نفل روژه نیول.

٧) میړه که یې دجماع دپاره راوغواړی نو بیله دشرعی ممانعته(دحیض دشپو) څخه

انکار نه ورته کول.

۸) میړه دغریبۍ یا دبدرنګ په خاطر حقیر نه بلل.

۹) که په میړه کی یوه خبره دشریعت خلاف یا دګناه ووینی نو په ادب سره یې منع کول.

۱۰) میړه ته په خپل نامه نه ویل.

۱۱) دیو چا ومخته دمیړه شکایت نه کول.

۱۲) دمیړه ومخته تیزی او ترخې خبری نه کول.

۱۳) ځان دمیړه دمور وپلار خدمتګاره بلل او دهغو ادب او احترام کول، هغوته په شخړو یا په یو بل طریقه باندی تکلیف نه ورکول.

## صالحه ماندینه

دقرآن پاك دحساب ښځه صالحه ماندینه هغه ده کوم چی دمیړه حاکمیت(مشرتوب) په تسلیمولو سره دهغه اطاعت وکړی، دمیړه ټوله حقوق د ادا کولو سره سم دهغه په غیر حاضری کی دخپل نفس او دمال حفاظت وکړی، دخپل عزت او دمال حفاظت کوم چی په کورنی ژوند کی تر ټولو ضروری دی، ددې په حفاظت کی دی دمیړه ومخته او په غیر حاضری کی یو رنګه حال وساتی، داسی نه چی دخاوند ومخته خو یې حفاظت کوی او په غیر حاضری کی بې لاپروایی کوی.

په یوحدیث شریف کی ددې نوره تشریح سته، رسول اللّٰهﷺ فرمائی﴿ډیره ښه ښځه هغه ده چی کله ته(یعنی میړه) ورته وګورې نو خوشحاله سې او کله چی ته هغې ته یو حکم ورکړې نو یې اطاعت وکړی او چی ته (پرکور) نه یې نو دخپل نفس او دمال حفاظت وکی﴾.(تفسیر معارف القرآن)

په یو بل حدیث شریف کی رسول اللّٰهﷺ فرمائی﴿کومه ښځه چی دمیړه امر منونکی او فرمانبرداره یی دهغې دپاره په هَوا کی مرغان، په دریاب کی ماهیان،

په آسمانو کی ملائکی او په ځنګلو کی پیریان استغفار کوی﴾. (بحرمحیط)

**وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ط**

نارِ شھوت نارِ دوزخ متّصِل
از تنہ چو شاخ باشد متّصِل

ترکِ شھوت نیست آساں اے فقیر
ورنہ ھر شھوت پرست گرد فقیر

پس ھمیں دستور از اللہ بود
کہ برد آنجا کہ اھل اللہ بود

شیخ کامل را طبیبِ خود بگیر
بھرِ حق آں را حبیبِ خود بگیر

شیخ العرب والعجم عارف باللہ
حضرت اقدس مولانا شاہ حکیم محمد اختر صاحب دامت برکاتہم